# د ښوونکي کتاب
# د تاریخ د تدریس لارښود

## اتم ټولګی




د پوهنې وزارت
د تعلیمي نصاب د پراختیا، د ښوونکو د روزنې او د ساینس د مرکز معینیت
د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تالیف لوی ریاست










د چاپ کال: ۱۳۹۰ هـ ش.




**د پوهنې وزارت**

د تعلیمي نصاب د پراختیا، د ښوونکو
د روزنې او د ساینس د مرکز معینیت
د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي
کتابونو د تالیف لوی ریاست


# د ښوونکي کتاب

# د تاریخ د تدریس لارښود

## اتم ټولګی


**د چاپ کال : ۱۳۹۰ هـ.ش**




**مؤلفان:**

- دکتور فاروق انصاری
- سرمؤلف عبدالغیاث غوری
- پوهنیار انیسه محمود عمر
- معاون مؤلف عبدالمالک عابد
- معاون مؤلف محمدحسین احمدزی
- معاون مؤلف ستوری سادات

**علمي او مسلکي ایډیټ:**

- پوهنمل زلمی هوتک

**د ژبې ایډیټ:**

- د مؤلف مرستیال سهراب دیدار

**دیني، سیاسي او کلتوري کمیټه:**

- ډاکټر عطاء الله واحدیار د پوهنې وزارت ستر سلاکار او د نشراتو رئیس.
- حبیب الله راحل د پوهنې د وزارت سلاکار
- محمد آصف کوچی

**د څارنې کمیټه:**

- دکتور اسدالله محقق د تعلیمي نصاب، د ښوونکو د روزنې او د ساینس مرکز معین
- دکتور شیر علي ظریفي د تعلیمي نصاب د پراختیا د پروژې مسؤول
- د سرمؤلف مرستیال عبدالظاهر گلستانی د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تالیف لوی رئیس.

**طرح او ډیزاین:**

- حمیدالله غفاري
- محمد اشرف امین





# ملي سرود

دا وطن افغانستان دی
دا عزت د هر افغان دی

کور د سولې کور د تورې
هر بچی یې قهرمان دی

دا وطن د ټولو کور دی
د بلوڅو د ازبکو

د پښتون او هزاره وو
د ترکمنو د تاجکو

ورسره عرب، ګوجر دي
پامیریان، نورستانیان

براهوي دي، قزلباش دي
هم ایماق، هم پشه یان

دا هیواد به تل ځلیږي
لکه لمر پر شنه آسمان

په سینه کې د آسیا به
لکه زړه وي جاویدان

نوم د حق مو دی رهبر
وایو الله اکبر وایو الله اکبر

**بسم الله الرحمن الرحیم**

## د پوهنې د وزیر پیغام

## ګرانو استادانو او ښوونکو،

ښوونه او روزنه د هر هېواد د پراختیا او پرمختګ بنسټ جوړوي. تعلیمي نصاب د ښوونې او روزنې مهم توکی دی چې د علمي پرمختګ او ټولنې د اړتیاوو له مخې چمتوکېږي. څرګنده ده چې علمي پرمختګ او ټولنیزې اړتیاوې تل د بدلون په حال کې وي. له دې امله لازمه ده چې تعلیمي نصاب هم د وخت له غوښتنوسره سم علمي او رغنده پراختیا ومومي. البته نه ښایي چې تعلیمي نصاب د سیاسي بدلونونو او د اشخاصو د نظریو او هیلو تابع شي.

د ښوونکی د لارښود دا کتاب چې نن ستاسو په لاس کې دی، پر همدې بنسټ چمتو اوترتیب شوی دی. د تدریس د نویو میتودونو له مخې فعالیتونه او معلوماتي مواد په کې ورزیات شوي دي چې په ډاډ سره به د زده کړې په بهیر کې د زده کوونکو د فعال ساتلو لپاره ګټور او اغېزمن وي.

هیله من یم د دې کتاب منځپانګه، چې د فعالې زده کړې د میتودونو د کارولو له لارې تالیف او چمتو شوې، ستاسو درنو استادانو د ګټې وړ وګرځي. له فرصت څخه په استفادې د زده کوونکو له میندو او پلرونو څخه غوښتنه کیږي د خپلو لوڼو او زامنو په باکیفیته ښوونه او روزنه کې پرله پسې مرسته وکړي چې په دې توګه د پوهنې د نظام موخې او هیلې ترسره شي او ځوان نسل او هېواد ته ښې پایلې او ښیاوې ور په برخه کړي.

زموږ ګران استادان او ښوونکي د تعلیمي نصاب په رغنده پلي کولو کې ستره دنده او دروند مسؤولیت لري.

د پوهنې وزارت تل زیار کاږي چې د پوهنې تعلیمي نصاب د اسلام د سپېڅلي دین له بنسټونو او ارزښتونو، د ټولنې د څرګندو اړتیاوو، ملي ګټو او وطنپالنې له روحیې او د ساینس او تکنالوژۍ له نوو علمي معیارونو سره سم پراختیا ومومي.

ددې سترې ملي موخې د تر لاسه کولو لپاره د هېواد له ټولو علمي شخصیتونو، د ښوونې او روزنې له پوهانو او د زده کوونکو له میندو او پلرونو څخه هیله لرم چې د خپلو نظریو او رغنده ګټورو وړاندیزونو له لار ې زموږ له مؤلفانو سره د درسي او د ښوونکي د لارښود د کتابونو په لا ښه تالیف کې مرسته وکړي.

له ټولو هغو پوهانو څخه، چې ددې کتاب په چمتو کولو او ترتیب کې یې برخه اخیستې او همدارنګه له ملي او نړیوالو درنو موسسو او نورو ملګرو هېوادونو څخه، چې د نوي تعلیمي نصاب په چمتو کولو او تدوین او د درسي او د ښوونکي د لارښود کتابونو په چاپ او وېش کې یې مادي یا معنوي مرسته کړې ده، مننه او درناوی کوم او د لا نورو مرستو هیله یې لرم.

ومن الله التوفیق

فاروق وردک

د افغانستان د اسلامي جمهوریت د پوهنې وزیر



فهرست

**سریزه:**

د ښوونکي لارښود کتاب، هغه کتاب دی چې ښوونکو ته د پروګرام په دقیق اجرا کې په ټولګیو کې لارښوونه کــوي. ددې کتاب بله ګټه داده چې ښوونکي د ښوونې او روزنې له عمومي اهدافو څخه په تحصیلي دوره کې خبروي او اشنا کوي يې.
دغه راز ددې کتاب له لارې ښوونکي د تدریس له څرنګوالي سره هم اشنا کیږي.
دغه لارښود په دوو فصلونو کې تنظیم شوي دي، لومړی فصل يې د کلیاتو تر سرلیک لاندې او د درسي پروګرام معرفــي او دویم فصل يې له درسي پروګرام سره اشنايي ده. د مقدماتو په برخه کې ښاغلي ښوونکي د ښوونې او روزنې له موخــو او د معلمی له رسالت سره اشنا کیږي.
دوي زده کوي چې زموږ د ګران هیواد د ښوونې او روزنې موخې پــه مختلفــو اعتقــادي،اخلاقي،علمي،پوهنیزو،کلتوري، هنري،مدني،ټولنیزو، او اقتصادي برخو کې څه هدفونه تعقیبوي،ددې موخو د تحقق لپاره مختلف درسي موضوعات طراحـــي شویدي.
او په بیلابیلو ټولګیو کې ښوونکي باید هڅه وکړي چې د تدریس د جذابو چلندونو له لارې د دغو موخــو د تحقــق زمینــه برابره کړي. ګران ښوونکي په دې توګه له درسي موضوعاتو، د هر لوست له کلي اهدافو، د پروګرام له محتوا، د تدریس له چلندونو، د درسي سامان او لوازمو له استعمال او نورو پوهنیزو، ښوونیزو او روزنیزو کړنلارو سره اشنا کیږي.
ددغه لارښود دویم فصل او څپرکی کلني پلان ته په سرو او تودو سیمو او د ورځني پلان له منابعو او ماخذونو سره چــې د لارښود د تالیف لپاره له هغو نه ګټه اخیستله شویده ددغه لارښود د لیکونکو اعتقاد دادی چې ښوونکي کله د کافي وخــت په نه لرلو سره د ورځني پلان د جوړولو وخت نه لري. او یا دا چې هر یو يې د درس له اهدافو څخه خاص استنباط لري. په نتیجه کې د دوی د تدریس څرنګوالی یو له بل څخه توپیر مومي.
د ښوونکو په کارونو کې د سهولت د رامنځ ته کولو په منظور درسي پلانونه داسې لیکل شویدي چې په ډیره ښــه توګــه د تدریس په اړوند د دوی اړتیاوې پوره کوي.
دغه توصیه شوې تدریسي کړنلاره ددې مانع نشي ګرځیدای چې کومه کړنلاره چې دوی د کلونو په اوږدو کې تجربه کړې او مثبته پایله يې هم ورځینې اخیستې ده تعقیب نکړي او هغه یوې خوا ته پریږدي. له شکه پرته یو ډیر ښه تدریسي میتود هغه دی چې له هغه نه په کار اخیستلو سره د زده کوونکو د زده کړې عملیه تر سره شي او ښوونکي د یوې دغسې عملیـــي پــه تطبیق سره د رضایت احساس کړي.
د ورځني پلان بله برخه د درس د متن پوښتنو، د لوست د پای سوالونو او یا د فصل د پای پوښتنو ته اختــصاص شــویده. د ښوونکو د پوهې د کچې د لوړو لپاره د هر پلان په پای کې اضافي معلومات راوړل شویدي، بې له شکه دغه لارښــود لــه ستونزو نه خالي ندی. ګران ښوونکي د تعلیمي نصاب مرکز ته د خپلو اندونو په را استولو سره کولای شي ددې لارښود پــه لاښه کیدو کې مرسته وکړي.
په پای کې ګران هیواد ته د صالحو، ایمان لرونکو او د هیواد په وړاندې د مسولو افرادو په روزنه کې ښاغلو ښوونکو تــه د لوی څښتن له درباره څخه د بریالیتوبونو هیله کوو.

# لومړی څپرکی (فصل)

## د ښوونې او روزنې اهمیت او د ښوونکي رسالت.

پوهانو، مربیانو او ښوونکو هر یوه په بیلابیلو بڼو ښوونه او روزنه تعریف کړیده.
ځینو ویلي دي چې ښوونه او روزنه د تیرو نیکونو د کلتوري میراث وده، لیږد او ارزونه ده. ځینې نوربیا په دې عقیده دي چې ښوونه او روزنه په فرد کې د ټاکلو وروستنیو صفاتو او قابلیتونو رامنځ ته کیدل دي.ځینو بیا داسې عقیده څرګنده کړیده چې ښوونه او روزنه د پټو استعدادونه ښکاره کیدل او یا په فعل باندې د استعدادونو بدلیدل دي او ځینې پوهان بیا وایي چې د فرد اماده کول دې ته چې څرنګه په یوه ټاکلې ټولنه کې ژوند وکړي او د هغه اشنا کول له خاصو افکارو، ادابو، دودونو او عقایدو سره د غسې یوې پروسې ته روزنه او ښوونه ویلای شو.
ځینې مربیان د اخلاقي،هنري، معنوي،کاري،اجتماعي،عاطفي،عقلاني او جسماني جنبو لارښوونې ته تعلیم او تربیت وایي. جان د یوي وایي. ښوونه او روزنه په تجربیاتو باندې نوې کتنه ده او دغه راز د هغو داسې بیا جوړونه ده چې د زیاتی ودې موجبات برابر کړي : دغه ټول پورتني تعریفونه صحیح دي، خو کافي ندي د ښوونې او روزنې مربیان د زده کوونکو له ښوونې او روزنې څخه زیاتې هیلې لري.
دوي له زده کوونکو څخه غواړي، ددې تر څنګه چې علم او کلتور زده کړي، ترڅنګ یې د خپل هیواد له کلتور،آدابو،او رسومو سره هم اشنایي پیدا کړي او ددې دپاره چې په بریالي ډول په خپله ټولنه کې ګام کیږدي، باید د اړونده ټولنې، عادات، مهارتونه او ځانګړې کتنې زده کړي چې په دې توګه هغو استعدادونو او قابلیتونو په ښوولو سره یو د اړتیاوړ شغل چې وکولای شي، اقتصادي اړتیاوې یې مرفوع کړي تر لاسه کړي. د اسلام د مبین دین له نظره د ښوونې او روزنې موخه د کامل انسان روزنه ده او کامل انسان هغه دی چې ټول وجودي (مادی او معنوی) ابعاد یې د امکان ترحده وده وکړي.
دښوونې او روزنې موخه له بیلابیلو حقایقو او واقعیتونو څخه د زده کوونکي د ذهن ډکول نه دي دغه راز یو ښه زده کوونکی هم الزاماً هغه څوک ندی چې ټول معلومات یې حاصل کړي وي برعکس، یو ښه زده کوونکی هغه څوک دي چې د هغه مادی و معنوی ابعاد په ټولو خواوو وده کړي وي او دایې زده کړي وې چې څرنګه زده کړه وکړي: د ښوونې او روزنې موخه یوازې او یوازې دا نه ده چې تنها نخبه ګانو ته پاملرنه وکړي او د نورو زده کوونکو په وړاندې بې تفاوتې ته مخه کړي. یو مطلب د ښوونې او روزنې نظام ټولو ته پاملرنه کوي. ښوونه او روزنه په خپلې اصلي معنا سره د ښوونې او روزنې ټولو موخو ته چې باید عملي شي، پاملرنه کوي. له بله پلوه یو وارد او پوه ښوونکی د تحصیل په ټولو دوروکې صحیح روزنیز بنسټ د بیلابیلو درسي فعالیتونو له لارې عملي کوي. زده کوونکي د نوې ځوانۍ په دوره کې ځانته ځانګړتیاوې لري. په دې دوره کې زده کوونکي په بدني لحاظ د جسمي بدلونونو یوې مرحلې ته ور دننه کیږي. د زده کوونکو اړیکې یو له بل سره او د هم عمره ډلې روابط په دې پیرکې یو ځانګړی انځور ځانته نیسي. په دې دوره کې د ټولنیزو کارونو د تر سره کولو لپاره د زده کوونکو اماده کول او د خلکو او بیلو قومونو د ادابو او دودونو پیژندنه نسبت تر کوچنیوالي په دې دوره کې زیاتیږي. نوي ځوانان په دې پیرکې له عاطفي پلوه همدا چې ښه کارونه تر سره کوي او له نوروسره مرسته کوي له دې څخه خوند اخلي دوی ته دا هم خوند ورکوي چې په خپلواکه توګه خپل کارونه ترسره کړي. دوی په دې مرحله کې له دې سره مینه لري چې د طبیعت او د معنا عالم په اړوند له ځانه زیاته مینه وښیي.
په دې دوره کې د دوی هنري ذوق او د ښکلا پیژندنې حس د ماشوم توب تر مرحلې زیات وي. تنکي ځوانان مینه لري چې ځان په مختلفو ډولونو څرګند کړي. دوی د زده کړې لپاره مختلف فرصتونه رامنځ ته کوي. کله ناکله د ځینو زده کوونکو کارونه ښوونکي ته په زړه پورې نه وي، خو دغه فرصتونه له لوړ تربیتي اهمیت څخه برخمن دي. یو پوه ښوونکی تل په دې

هڅه کې وي چې له همداسي فرصتونونه د زده کوونکو د وجودي ابعادو د ودې لپاره په بیلابیلــو علمي،اجتمــاعي،اخلاقي، دیني،جسماني او عقلاني برخو کې زښته ډیره ګټه پورته کړي.

## په افغانستان کې د ښوونې او روزنې عمومي موخې:

په افغانستان کې د ښوونې او روزنې عمومي اهداف د افغاني ټولنې د شرایطو په نظر کې نیولو سره او د علم او پوهی د هــر اړخیزې ودې نه د ښوونې او روزنې په ګټې استفاده کول، په لاندې ډول وړاندې کیدای شي.

### الف- اعتقادي او اخلاقي موخې:

د قراني زده کړو او نبوي سنتو پر بنسټ د ایمان پیاوړتیا او په اسلامي اساساتو باندې اعتقاد او له هر ډول افراط او تفــریط څخه خلاص او د اسلامي نظر پراختیا.

د ځان د پیژندنې د روحیې رامنځ ته کول، د خدای (ج) د پیژندنې لپاره په نفس باندې د اعتماد د روحــې پیاوړتیــا او پــه اخلاقي سجایاوو التزام

– د نظم او دسپلین د روحیې رامنځ ته کول او د قانوني ارزښتونو رعایت.

– د اجتماعي،تربیتې او تعلیمي ارزښتونو لپاره د مسولیت د درک د روحیې پیاوړتیا.

### ب: علمي او ښوونیزې موخې:

د ښوونیزې پروسې په پایله کې چې د تعلیمي نصاب او له دغه نصاب پرته صورت مومي، زده کوونکي اساســي او لازمــي پوهه تر لاسه کوي او لوړو فکري مهارتونو ته به وده ورکړي بناً لاندې علمي ښوونیزې موخې په پام کې نیولې شوي دي.

– د ښوونیزو مهارتونو ترلاسه کول او پیاوړتیا، لکه: ښه اوریدل،خبرې کول، لوستل او لیکل او دغه راز د شمیرو په کــار وړل او هم په رسمي او خارجي ژبوکې د ښه لیک د زده کړې د مهارتونو زده کول.

د زده کړې په پروسه کې د ځاني ارزونې لپاره د استعدادونو وده او ورڅخه لاس ته راغلې پایلې.

– په علمي کلتوري او فني خواوو کې د فکر د قابلیت پیاوړتیا تعمق،مطالعه،څیړنه او ابتکار.

– د اړتیا وړ اجتماعي او فردي مهارتونو ترلاسه کول او د معاصرې تکنالوژۍ د فنونو او پوهنو زده کول.

– د اجتماعي او فردي پرابلمونو د معضلو د حل لپاره د مهارت ترلاسه کول.

### ج: کلتوري او هنري موخې:

د کلتور او هنر پیژندنه (لاسي صنایع،ستن ګنډنه، خامک ګنډنه، او بدنه، مهندسي، رسامي،خطاطي، نقاشي، د کور تزئین او موزیک) او نړیوال سالم هنرونه او همدارنګه د هنري، ذوق او استعدادنو روزنه. او هم ښکلا پیژندنه.

د نړۍ او افغانستان د ملي او اسلامي کلتور او تمدن څخه خبرتیا، د کلتور وده او د افغانستان د منل شوو آدابو او ســننو د اصالت ساتنه

– د تمرین او فردي او اجتماعي فعالیتونو له لارې د هنري مهارتونو وده.

### د مدني او اجتماعي اهداف:

دلاندې موخو تعقیب د یوې کورنۍ، ځای، سیمې، ملي او نړیوالې ټولنې د غړو په توګه د زده کوونکو د موقف په وده کــې مرسته کوي.

– له ملي نوامیسوڅخه د ساتنې د روحیې پیاوړتیا او ساتنه: د اسلامي اخلاقو او حقوقو د برابری پر بنسټ د کورنۍ د بنسټ تحکیم ،

– د وروروليۍ د روحيې پياوړتيا،تعاون، سوله، ټولنيز عدالت، ملي او بين المللي يو موټي والى.
– د خير غوښتنې د حس وده او د اخلاقي فضايلو پورته بوول، له ناروا جګړو سره ضديت او له مخدرو توکو سره مبارزه.
قانون ته د درناوى د روحيې پياوړتيا، دهغــه رعايــت او لــه ټــولنيزو حقوقوڅخــه پلــوى پرتــه لــه دې چــې قــام، جنس،اقتصادي،اجتماعي، او سياسي توپير په پام کې ونيول شي
– په اقتصادي، اجتماعي،کلتوري او ديني چارو کې د مشارکت د روحيې انکشاف او وده.
– د متقابل پوهاوى او زغملو د کلتور د روحيې رامنځ ته کول.
– د بين المللي ټولنې د تخنيکي او علمي لاس ته راوړنو او تجاربو څخه د استفادې د روحيې پياوړتيا.

## اقتصادي موخې:

– له کورنى اقتصاد سره د ټولنې د اقتصاد د ودې د تړاو د ضرورت درک.
– په ګټورو کارونو کې د کار د پياوړتيا د ارزښت او اهميت درک.
– له تجملاتى کارونو او اسراف نه د پرهيز،قناعت او سپماکولو د روحيې رامنځته کول.
د اقتصادي سر چينو پيژندنه، د را ايستنې مناسب چلندونه، له هغو نه ګټه اخستنه او له مالونو نه د ساتنې د روحيې روزنه

## له ۷-۹ ټولګيو د منځنۍ دورې عمومي موخې:

هغه زده کوونکي چې ابتدائيه دوره په برياليتوب سره تيروي. له غوښتنې سره سم پــه دې تعليمــي او تربيتــې دوره کــې شامليږي، ددې دورې کلي موخه د زده کوونکو د مينې او استعداد په مطابق د ژوند د مختلفو مسيرونو انتخاب ، د هيواد د امکاناتو او اړتياوو په پام کې نيولو سره ددې دورې اهداف بايد داسې په پام کې وي.
۱– د راتلوونکې دورې لپاره د تيرو دورو د تعليمي او تربيتي لاس ته راوړنو پياوړتيا.
۲– له اسلامي پوهنې سره زياته اشنايي او په اعتقادي مبانيو او اخلاقي، ديني مسايلو کې تعمق اود معلوماتو پراختيا.
۳– د لوى څښتن د زياتې پيژندنې په منظور د ځان پيژندنې د روحيې وده.
۴– په درسي مختلفو څانګو کې د زده کوونکو د استعدادونو تشخيص.
۵– د ژونديز چاپريال، قوانينو، طبيعت،پوهنو،بشري پرمخ تللو تجربو په هکله د معلوماتو زياتوالى او د زده کوونکو د پلټنې د حس وده چې د ساينس په اساساتو، وسايلو او مفاهيمو باندې ولاړوي.
٦– د هيواد د رسمي ژبو د زده کړې متوازن انکشاف، د مورنۍ او بهرنيو ژبو پياوړتيــا او وده او د تحريــري او شــفاهي مرامونو په افاده کې د زده کوونکو د علمي سويې وده.
۷– د وروروليۍ، مرستې،سولې، ملي يو والي لپاره، له نارواجنګونو، تروريزم او مخدره موادو سره ضديت، د راز راز تبعيض او تعصب نفي او زده کوونکو ته په ښو کارونو او په سالمو سياليو کې تګ لورى ورکول.
۸– د هغوى د استعدادونو، علاقې او ذوق په مطابق د شغل په انتخاب کې د هغوى د تصميم نيونې د مهارتونو وده.
۹– د مسوليت منبې او په غاړه اخيستنې د روحيې پالنه او په ديني کلتوري او ټولنيزو چاروکې او د زده کوونکو د معلوماتو وده.
۱۰ د هغوى د علمي زمينې د برابرولو او د کار او هڅې لپاره د زده کوونکو د مينې روزل.
۱۱– په روزنيزو بهيرونو کې د ځاني سنجش د مهارتونو وده.
۱۲– د خپل ځان له جسمي روغتيا څخه څارنه.



# د تاریخ د زده کړې ارزښت

## الف: تاریخ څه دی؟

تاریخ هغه پوهنه ده چې تیرې پیښې د زمان او مکان په قید سره بیانوي، د پیښې په اړه زمان او مکان ته دقت او ځیرتیا تاریخ له افسانو نه بیلوي. هره پیښه چې په یوه ټاکلي وخت او یوه ټاکلي ځای کې واقع شوې وي، یوه تاریخي واقعه بلل کیـــدای شي.

د ساري په ډول د بدر غزا چې د هجرت په دویم کال او مدینې منورې ته نږدې پیښه شوې ده، دا یوه تاریخي پیـــښه ده، د تاریخ د علم دنده ده چې د هغې پیښې په اړه موږ ته معلومات راکړي. د تاریخ علم له اجتماعي علومو څخه دی، د اجتماعي علومو له مختلفو څانګو سره اړیکې لري. دغه اړیکې له ځینې علومو سره یو اړخیزه وي، لکه: د کیمیا،بیولوژي،فزیـــک، او نورو سره. په داسې حال کې چې بیا همدا تاریخ له ځینو نورو علومو، لکه: ټولنپوهنه، اقتصادي بشر پیژندنه، لرغون پیژندنه او ځینو نورو پوهنو سره دوه اړخیزې اړیکې لري. هم د علومو دغو ډلګې ته مرسته ورکوي او هم موخې ته د رسیدو لپـــاره ورځینې مرسته غواړي. د بشري ټولنې د تاریخ د پیژندنې لپاره باید څو اړخیزې مطالعې ترسره شي. دغه خـــواوې عمـــدتاً د ټولنو کلتوري، اقتصادي او ټولنیز سیاسي تاریخي جوړښت په خپله لمنه کې رانغاړي. د همدې خواوو په بنیاد کولای شـــو، تاریخ د ټولنو کلتوري تاریخ،اقتصادي تاریخ، ټولنیزتاریخ، تحلیلي تاریخ او سیاسي تاریخ تر سرلیکونو لاندې سره وویشو.

پوهانو د تاریخ د ښې پوهیدنې لپاره تاریخ په دوو برخو ویشلی دي.

۱ – د تاریخ نه دمخه دوره

۲ – تاریخي دوره

د تاریخي پیښو د پیژندنې لپاره تاریخي سر چینې مهمې دي، د تاریخي منابعو له شتون نه پرته د تاریخي حکم صدور ممکـــن ندی. خطي او تحریري منابع، شفاهي، فلکلوري او مادي سر چینې او تاریخي آثار د تاریخي منابعو له ډولونو څخه دي.

د منابعو تحلیل او ارزونه د منابعو په نوعیت پورې اړه لري چې د تاریخ لیکوونکو د استفادې وړ دي. د تاریخ په تـــالیف او تدوین کې حقیقت موندنه یوه ډیره ستره ستونزه ده، په تاریخي متن کې د لیکوال د ذهنیت نه د خیلول لـــه( حـــب بغـــض) اغماض، پټونی او داسې نورو مسایلو څخه مخ نیوی، د تاریخ په تدوین او برابرولو کې مهمه اغیزه لري.

## ب: د تاریخ د زده کړې اهمیت

تاریخ انسان له پخوانیو ټولنو او تمدنونو سره اشنا کوي او د ژوند له تیتو او هسکو رمزونو څخه یې خبروي. د تاریخ مطالعه انسان د دودونو او ادابو له تنګ قفس څخه آزادوي او مطالعه کوونکی له ځانه سره د بیلابیلـــو ټولنـــو د ژونـــد د راز راز سبکونو ننداري ته په مختلفو زمانو کې بیایي او ډول ډول شخصیتونه او کلتورونه راپیژني. تاریخ موږ په مختلفو ډګرونو کې د علم او تفکر د پرمختګ له موجباتو سره اشنا کوي او د زمانې او مکان په اوږده لمن کې د تکنالوژي وده ښـــیي. تـــاریخ بیلابیل نظامونه او حکومتي بیلابیلې کړنلارې موږ ته راپیژني او د هر یوه عیب او مثبت ټکې راپیژني. له همدې امله تـــاریخ د پخوانیو تمدنونو،ټولنو او نسلونو د واقعي ژوند د عبرتونو ستر کتاب دی او دغه عبرتونه زده کوونکو ته ددې موقع برابروي چې خپل ذهن د تحلیل ځواک ته د ټولنیز نظام په پیښوکې زیاتوالی ورکړي او په دې توګه سیاســـي، اقتـــصادي او ټـــولنیز نظامونه تحلیل او نقد کړي او په خپل ژوند کې د پخوانیو له مثبتو تجربو څخه ګټه واخلي او د هغوی له تیروتنو څخه ځـــان لرې وساتي.



### ج: د تاریخ د زده کړې موخې:

– د ثانوي دورې د تاریخ د مضمون له تدریس څخه وروسته له زده کوونکو څخه دا هیله کیږي چې لاندې پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې لاسته راشي.

– د نړۍ، سیمې او هیواد له تاریخ سره زده کوونکي اشنا کړي.

– اجمالاً د پخوانیو تمدنونو او ټولنو سره زده کوونکي اشنا کړي.

د پخوانیو خلکو د فردي او اجتماعي ژوند له ټیټو او هسکو سره هغوی اشنا کړي.

– د تیرو انسانانو د ژوند له سبکونو سره زده کوونکي اشناشي او زده یې کړي.

– د تیرې دورې یو شمیر مهم شخصیتونه هغوی ته ورو پیژني.

– د اسلام د تاریخ پیداینبت او پراخیدنه هغوی ته اجمالاً ووایي.

– په لنډه توگه په افغانستان کې د اسلام د خپریدا او قبلیدنې تاریخ هغوی ته ورزده کړي.

– په بیلابیلو ډگرونو کې هغوی د علم او تفکر د ودې او پرمختگ سره اشنا کړي.

– له سر چینو څخه د استفادې او د تکنالوژۍ له تدریجي ودې سره هغوی اشناکړي.

– هغوی له هغو سیاسي بیلابیلو نظامونو سره اشنا کړي کوم چې د تاریخ په اوږدو کې یې پر انسانانو حکومت کړی دی

-- زده کوونکي وکولای شي تاریخي مفاهیم درک او تشریح کړي.

– د هغوی ذهني ځواک د تاریخي پیښو د تجزیه کولو اوارزونې په اړه زیات شي.

– زده کوونکي په دې قادر شي چې د پخوانیو له کړنو او تجربو څخه د خپل ژوند په بیلابیلو ډگرونو کې گټه واخلي او دغه رنگه د پخوانیو خلکو له غلطو کړنو څخه ځان وژغوري.

– زده کوونکي وکولای شي د خپلې پیژندنې په رڼا کې د سیاسي او اقتصادي نظامونو مثبتې او منفي خواوې تحلیل او مختلف ابعاد یې نقد کړي.

– زده کوونکي وکولای شي د اوریدو، مباحثې او لوستلو له لارې له نورو سره ارتباطي مهارتونه ټینگ کړي.

– هغوی په دې وتوانیږي چې د پخوانیو انسانانو له تجربو څخه په عبرت اخیستنې سره په ټولنه کې د فعالو او گټه رسوونکو انسانانو په بڼه بدل شي.

### د ټولنیزو پوهنو په زده کړه کې د درسي پروگرام لیدلور:

په درسي پروگرام کې له لیدلور څخه هدف علمي او تربیتي ملاحظاتو ته په پاملرنې سره د یوې پوهنیزې موضوع زده کول دي. د تاریخ په زده کړې کې اصلي غرض او لیدلور د تاریخي علمي لید زده کول او عبرت اخیستنه ده. د علمي لیدلور او غرض څخه منظور د یوې تاریخي پیښې جوړوونکي عناصر دي. وخت،ځای، ستې(شخصیتونه) لاملونه، د پیښې عواقب، او له عبرت اخیستلو څخه منظور د یوې تاریخي حادثې نه مختلف درسونه دي.

په تاریخ کې د زمانې له ویش نه پرته نشو کولای، ددغو صنفونو مطالعه او فهم تکمیل او د فهم وړ کړو په تاریخ کې د زمان درک او تثبیت د تاریخ د علم یو بنیادی بعد دی.

پوهانو د تاریخي پیښو او حوادثو ښه پیژندنې لپاره تاریخي دورې مطرح کړي دي او د تاریخي مسایلو په تهیه، تدریس او تفهیم کې هغه په نظر کې نیسي.

تاریخ هغه پوهنه ده چې تیرې پیښې د ځای او وخت په قید سره بیانوي.

د تیروپیښو وخت او ځای ته ځیرتیا او دقت تاریخ له افسانې څخه بیلوي.

# د تاريخ لوستونو د پراختيا او تسلسل جدول: اتم ټولګی

| څپرکی | اصلي او فرعي سرليکونه | پوهنيزې پايلې | مهارتي پايلې |
|---|---|---|---|
| لومړی څپرکی: افغانستان او اسلام | • دافغانستان اوضاع د اسلام د پيدايښت په مهال.<br>• د اسلام د دين خپرول.<br>• د امويانو په دوره کې د افغانستان اوضاع<br>• دافغانستان په شمال کې د يحيى بن زيد پاڅون<br>• ابومسلم خراساني<br>• امير فولاد او امير کروړ غوري<br>• د عباسيانو په دوره کې د افغانستان اوضاع<br>• برمکيان<br>• د عباسيانو په دوره کې فرهنګ او علوم<br>• د مسلمان عربو او د افغانستان د خلکو متقابلې اغيزې | له زده کوونکو څخه هيله کيږي چې ددې څپرکي په لوستلو سره لاندې پوهنيزو موخو ته ورسيږي.<br>• د افغانستان له عمومي اوضاع سره د اسلام د خپريدو په مهال آشناشي.<br>• مهمې عربي اسلامي کورنۍ (امويان او عباسيان) دې و پيژني.<br>• د افغانستان د خلکو د پاڅونونو له لاملونو سره آشنايي تر لاسه کړي.<br>• ددې دورې مهم تاريخي شخصيتونو، لکه: ابومسلم خراساني، امير فولاد او امير کروړ دې وپيژني.<br>• د امويانو او عباسيانو په دوره کې د افغانستان له ټولنيزې اوضاع سره آشناشي.<br>• د افغانستان د خلکو او اسلام له اغيزو سره آشنا شي. | له زده کوونکو څخه هيله کيږي چې ددې څپرکي په لوستلو سره د تاريخي پيښو د تحليل مهارت ترلاسه کړي.<br>د تاريخي اتلس او له جغرافيايي نقشو څخه د ګټې اخيستلو مهارت پيدا کړي. |
| دويم څپرکی: د افغانستان خپلواکه اسلامي حکومتونه | • طاهريان<br>• صفاريان<br>• سامانيان<br>• غزنويان<br>• سلجوقيان<br>• د سلجوقيانو تر ټولو لوی خدمت | له زده کوونکو څخه هيله کيږي چې ددې څپرکي په لوستلو سره لاندې پوهنيزو موخو ته ورسيږي.<br>• د اسلامي خپلواکه حکومتنو له اصلي ټاټوبي سره له طاهريانو څخه تر آن کرت پورې آشناشي.<br>• په افغانستان کې د اسلامي حکومتونو د جوړيدو له څرنګوالي سره آشنايي پيداکړي. | له زده کوونکو څخه هيله کيږي چې ددې څپرکي په لوستلو سره:<br>د تاريخي پيښو د تحليل مهارت پيدا کړي.<br>زده کوونکي وکولای شي چې د پورتنيو لړيو په اړه تاريخي ريپوټ چمتو کړي. |

| | | | |
|---|---|---|---|
| | • غوریان<br>• خوارزم شاهیان<br>• مغولان<br>• آن کرت<br>• تیمور<br>• د هرات تیموریان | • له هغو شخصیتونو سره چې د لومړي ځل لپاره یې د خپلواکۍ پرچم یې راپورته کړ، آشناشي.<br>• په افغانستان باندې د مغولانو د تاریخي یرغل له زمینو سره آشناشي.<br>• له مغولانو او تیموریانو سره د ځایي حکومتونو د اړیکو له څرنګوالي سره آشناشي. | |
| دریم څپرکی: قندهار له پاڅون څخه دمخه د افغانستان او ګاونډیو هیوادونو اړیکې. | • د ماوراءالنهر شیبانیان<br>• استراخانیان<br>• د هند بابریان<br>• د بابر زامن<br>• د ایران صفویان | د ګاونډیو واکمنانو له دورو سره د زده کوونکو آشنا کول لکه:<br>• شیبانیان، د ماوراءالنهر ستراخانیان، د هند بابریان او د ایران صفویان.<br>• له افغانانو او د پورتنیو لړیو د اړیکو له څرنګوالي سره د زده کوونکو آشنا کول. | • د پورتنیو هیوادونو فرهنګ او همدارنګه له ګاونډیانو سره د افغانانو اړیکه دې تحلیل کړي.<br>• زده کوونکي وکولای شي چې د خامې نقشې د بشپړولو مهارت پیداکړي. |
| څلورم څپرکی: د قندهار پاڅون | • د قندهار پاڅون (هوتکیان)<br>• د حاجي میروس خان ځای ناستی<br>• میر عبدالعزیز<br>• شاه محمود هوتکي<br>• په ایران باندې یرغل<br>• په ایران کې د هوتکي دولت جوړیدل<br>• د هوتکي دولت پای | • په قندهار کې د افغانانو د خپلواکۍ غوښتنې موخې سره د زده کوونکو آشنا کول:<br>• د حاجي میروس خان هوتکي د خوځښت د جوړیدلو له زمینو سره د زده کوونکو آشنا کول:<br>• د میرویس خان له ځای ناستي، په ایران کې د هوتکي دولت له جوړولو او د هوتکیانو د کار له پای سره د زده کوونکو آشنا کول. | له زده کوونکو څخه هیله کیږي ددې څپرکي په لوستلو سره وکولای شي:<br>• د ملي او محلي خپلواکۍ غوښتونکو د جوړښت زمینې تحلیل کړي.<br>• همدارنګه زده کوونکي وکولای شي تر اصفهان پورې د افغانانو د حرکت سیر رسم کړي. |

| | | | |
|---|---|---|---|
| پنځم څپرکی: په منځنيو او نويو پيړيو کې د ګاونډيو هيوادونو تاريخ. | • ايران په منځنيو او نويو پيړيو کې: (طبرستان علويان، زياريان، آل بويه، صفويان، افشارايان او زنديه):<br>• هند په منځنيو او نويو پيړيو کې:<br>• په هند کې د لوديانو او سوريانو افغاني واکمني.<br>• په هند کې د ګورګانيانو واکمني.<br>• روسيه په منځنيو او نويو پيړيو کې.<br>• د لوی پطر سلطنت.<br>• چين په منځنيو او نويو پيړيو کې. | له زده کوونکو څخه هيله کيږي چې ددې څپرکي په لوستلو سره لاندې پوهنيزو موخوته ورسيږي.<br>• د ايران، هند، روسيې او چين د هيوادونو جغرافيايي موقعيت سره آشناشي.<br>• د نومول شويو هيوادونو له سياسي اوضاع سره آشنايي.<br>• په منځنيو او نويو پيړيو کې د چين له هيواد سره آشنايي. | له زده کوونکو څخه هيله کيږي چې ددغه څپرکي په لوستلو سره لاندې مهارتي موخې ترلاسه کړي:<br>• د نوموړو هيوادونو سياسي، اجتماعي او فرهنګي حالت تحليل کړای شي.<br>• په سيمه کې د تاريخي پيښنو بشپړول دې تحليل کړي.<br>• خامه نقشه بشپړ کړای شي. |
| شپږم څپرکی: په منځنيو او نويو پيړيو کې د اروپا تاريخ | • په منځنيو پيړيو کې د اروپا عمومي اوضاع<br>• ټولنيز او اقتصادي اوضاع<br>• په منځنيو پيړيو کې سياسي اوضاع<br>• صليبي جګړې.<br>• د صليبي جګړو پايله.<br>• رنسانس.<br>• د ښاري ژوند پراختيا.<br>• د پاچاهانو د ځواک پراختيا.<br>• د علم، ادب او فرهنګ په برخه کې بدلونونه<br>• د اروپا انقلابونه .<br>• د انګليستان صنعتي انقلاب<br>• د فرانسې لوی انقلاب | له زده کوونکو څخه هيله کيږي چې ددې څپرکي په لوستلو سره لاندې پوهنيزو موخوته ورسيږي:<br>• د لاندې اصطلاحاتو او مفاهيمو سره آشنايي:<br>• منځنۍ پيړۍ او رنسانس.<br>• په نومول شوې پيړۍ کې د اروپا له ټولنيزې اوضاع سره آشنايي.<br>• په نومول شوې پيړۍ کې د اروپا سياسي اوضاع سره آشنايي.<br>• د صليبي جګړو د لاملو سره آشنايي.<br>• د اروپا له انقلابونو سره آشنايي.<br>• د انګلستان انقلاب.<br>• د فرانسې انقلاب. | له زده کوونکو څخه هيله کيږي چې ددې څپرکي په لوستلو سره لاندې مهارتي موخو ته ورسيږي:<br>• په منځنيو او نويو پيړيو کې د اروپا لپاره د يو زماني کرښې رسمول.<br>• په اروپا کې د ديني او سياسي ژوند په هکله د کليسا په اړوند خبرې.<br>• په اروپا کې د رنسانس د ظهور په اړه خبرې.<br>• د انګلستان صنعتي انقلاب او د فرانسې لوی انقلاب ترمنځ د لاملونو او پايلو له پلوه پرتله. |

| اووم څپرکی: په منځنیو او نویو پیړیو کې د امریکا تاریخ | • د امریکا اصیل خلک<br>• د مایا تمدن<br>• د آزتک تمدن<br>• د اینکا تمدن<br>• د امریکا کشف او د مهاجرتونو پیل<br>• د امریکا د متحده ایالاتو خپلواکي. | له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې ددې څپرکي په لوستلو سره لاندې پوهنیزو موخو ته ورسیږي:<br>• د امریکا له اصیلو قومونو سره آشنایي (مایا، اینکا، آزتک)<br>• امریکا ته له نویو مهاجرتونو سره آشنایي.<br>• له خپلواکۍ نه مخکې د سیاسي او ټولنیزې اوضاع سره آشنایي.<br>• د امریکا د خپلواکۍ له مراحلو سره آشنایي. | له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې ددې څپرکی په لوستلو سره لاندې مهارتي موخوته ورسیږي:<br>• د امریکا د اصیلو قومونو د جغرافیایي نقشې توزیع او رسمول.<br>• د امریکا د خپلواکی د اخیستلو د څرنګوالي توضیح. |
|---|---|---|---|

## د تدریس ستراتیژي د اجتماعیاتو په زده کولو کې:

د اجتماعي درسونو د تعلیمي نصاب د تدریس ستراتیژي، لکه: د نورو رشتو په څیر ډولونه لري، خو د اجتماعي درسونو مضمون ځانګړې ستراتیژۍ لري چې د هغو موضوعاتو له طبیعت سره مناسب دي.

دلته لازمه ده چې هغوستراتیژیو ته مخه وکړو کوم چې د تاریخ د مضمون طبیعت، د افغانستان له شرایطو او د زده کوونکو له علمي اوسنۍ کچې سره سمون لري. دغه ستراتیژۍ ګانې پردې اصل ولاړې دي چې تعلیم د زده کوونکي پر محور چورلي او ښوونکی یواځې د تعلیم کار اسانه کوي. صحیح تعلیم ډول ډول ستراتیژیو ته اړتیا لري چې باید د مضمون له طبیعت سره تناسب ولري. مهمې ستراتیژۍ په دې ډول دي.

### ۱ـ پلټنه او د مسئلې حل:

د مسئلو د حل ستراتیژي هغه ستراتیژي ده چې اساسي پوښتنې مطرح کوي او زده کوونکي باید ځواب ووایي او د هغو حل بیامومي.

زده کوونکي دا کار باید د معلوماتو او حقایقو د تفحص له لارې په لاندې مراحلو کې ترسره کړي، د نمونې د انتخاب د مسلې ټاکل، فرضیه جوړونه، د ذهني حل لارې، د مسلې د حل د لارې د بیان راټولونه، د بیاناتو راټولونه، تحلیل، له بیاناتونه نتیجه اخیستنه، د آند څرګندونه او د ښوونکي زیاته څېرتیا. ښوونکی کولای شي له دې ستراتیژۍ څخه د واقعي ژوند د مسائلو د وړاندې کولو په ترڅ کې اقتصادي، اجتماعي او سیاسي ګټه واخلي او زده کوونکي په څو ډلو وویشل شي چې د ممکنو جلا لارو په اړه بحث وکړي. ښوونکي باید له زده کوونکو سره مرسته وکړي چې اړینې سرچینې د هغوی په واک کې ورکړي، د ښوونې او روزنې عملیات تنظیم کړي او هغوی وهڅوي چې له خپلو مهارتونو څخه په بحث او پلټنه کې استفاده وکړي.

### ۲ـ د متن شاربنه (تحلیل)

له دغې ستراتیژۍ څخه د تاریخ د مضمون او مدني معلوماتو په مضامینو کې ګټه اخیستل کیږي. دغه ستراتیژي له هغو متنونو څخه چې له مصادرو او مراجعو څخه غوره او ټاکل کیږي دغه ستراتیژي په دغو مراحلو کې شامله ده.

– له هغه وروسته چې اصلي متن زده کوونکو ته واضح شو ښوونکی هغه لولي.
– زده کوونکو ته یو لنډ وخت ورکوي چې متن ولولي او پرهغو پوښتنو چې مطرح کېږي، فکر وکړي.
– ښوونکی او زده کوونکي په ډله ییزې مباحثه کې پر ځوابونو بحث وکړي.
– ښوونکی د اصلي متن او نورو توکو په منځ کې اړیکې ځای پرځای کوي چې د بیلابیلو مضمونونو تر منځ اړیکې رامنځ ته شي.

### ۳- د مستقیم تدریس ستراتیژي

هغه مهال له دې چلنده څخه ګټه اخیستله کیږي چې ښوونکی وغواړي د بیان له چلند څخه په کار اخیستنې سره مطالب بیان کړي. په دې چلند کې اساسي نقش ښوونکی لوبوي. دغه تګ لاره د تاریخي موضوعاتو د تدریس لپاره لکه: (لومړۍ نړیواله جګړه) مناسبه ده. ښوونکی کولای شي له دې کړنلارې څخه په کار اخیستنې سره د مفاهیمو تدریس او تعمیم ته د رسیدنې لپاره استفاده وکړي، په هغه صورت کې چې له قیاسي طریقې څخه کار واخلي، لاندني پړاوونه دې په نظر کې ونیسي:

د مفهوم لپاره یو تعریف افاده کړي. له زده کوونکو سره د اقتصاد د ځانګړتیاوو په اړه مباحثه وکړي.

له مفهوم څخه د مثالونو په وړاندې کولو له هغو څخه دې وغواړي چې هغه سره یوځای کړي.

د کرنې او سوداګرۍ د اقتصاد د مفهوم په اړوند دې مثالونه ووایي.

### ۴ ـ د ډله ییز کار ستراتیژي:

په دې چلند کې زده کوونکي په څو ډلو ویشل کیږي. د زده کړې دغه فعال چلند صحیح غـــوږ نیولـــو او د خبرواتـــرو د مهارتونو له لارې زده کوونکي هڅوي. په دې چلند کې د هرې ډلې زده کوونکي یو ګډ هدف ته د رسیدو لپاره له یـــو بـــل سره کار کوي. ښوونکی کولای شي له ځینو وسایلو څخه په استفادې له زده کوونکو سره مرسته وکړي.

له ډله ییز کار څخه کولای شو د ساده څیړنو په سرته رسولو، د نقشې په ترسیم، د یوې نندارې د ښودلو او د یـــوه مـــدل د جوړولو په برخه کې استفاده وکړو

### ۵ ـ د نقش لوبول

دغه چلند د زده کولو له فعالو چلندونو څخه شمیرل کیږي. په دې چلند کې له زده کوونکو څخه هیله کیږي چـــې ټـــاکلي نقشونه چې په واقعي ژوند کې وجود لري؛ ولوبوي. ښوونکی باید هر یو زده کوونکي ته ووایي چې یـــو رول ولوبـــوي، د ساري په ډول له زده کوونکو څخه غوښتل کیږي چې د د کرنې د ودې مساله تمثیل کړي، ښـــوونکی د زده کوونکـــو پـــه مرسته موضوع مشخصوي او د ټاکلې رول د لوبولو لپاره څو تنه غوره کوي، د ساري په ډول د بیوزلو بزګرو د رول لپـــاره لومړی زده کوونکی د کرنې د وزارت لپاره، دویم زده کوونکی د ځمکي څښتن او دریم زده کوونکی د غریب نقش لپـــاره غوره کوي. وروسته له هغې ښوونکی زده کوونکي ازمویي او ټولګی د ازموینې لپاره تیـــاروي او زده کـــوونکي خپـــل رول لوبوي.

### توضیحي چلند:

توضیحي چلند له چاپې مطالبو زده کوونکو ته د اطلاعاتو له مستقیم لیږد څخه عبارت دی. د تدریس له تـــشریح او نـــورو رسنیو نه په استفادې سره . په دې چلند کې ښوونکی درسي موضوعات او مفاهیم زده کوونکـــو تـــه وړانـــدې کـــوي. د توضیحې چلند بله ښیګڼه داده چې کولای شو زده کوونکو ته د حقایقو مکمله ټولګه، اصول او مفاهیم په مجـــسم ډول ور زده کړو.

ددغه چلند له محدودیتونو څخه دادي چې زده کوونکی حاضر او تیار مطالب تر لاسه کوي او د حقایقو په زده کولو کـــې فعاله وي دغه چلند په هغه صورت کې چې له نورو چلندونو سره په کار یو وړل شي، اغیزمن به وي. له توضیحې چلند څخه د ډیرو علمي مفاهیمو په زده کړه کې ګټه اخیستلای شو.

### ٦ـ د تمرین چلند:

تمرین له هغو فنونو څخه دی چې له پخوا زمانو څخه د زده کړې لپاره کارول شوی دی. نن سبا چې روزنیـــزې مـــوخې د ذهني او مهارتي پوهاوي په چاپیریال کې تنظمیږي، زده کوونکو ته د مناسبو تمرینونو په ورکولو کې د ښوونکي مـــسوولیت ډیریږي، تمرین بیلابیل ډولونه لري، لکه: تکراري تمرین، استنباطي تمرین چې د تفکر،استدلال او د مفاهیمو له استعمال سره مل وي. بل ډول یې عملي تمرینونه دي چې له عملي تمرینونو څخه کولای شو چې د تاریخي او جغرافیایي نقشو د لوستلو، د جغرافیایي طول، عرض او د شجره لیکونو د پیدا کولو د مهارت د ترلاسه کولو لپاره استفاده وکړو.

### ۸- د ډله ییزو خبرواتروچلند –ډله ییزه مباحثه

د مباحثې یا خبرواترو چلند یو ډیر لرغوني چلند دی چې د ښوونې او روزنې د تاریخ په اوږدو کې عملي شویدی. په ډله ییـــز چلند کې ښوونکی لومړی زده کوونکي په څو ډلو ویشي، هرې ډلې ته موضوع مشخصوي او له زده کوونکو څخه غـــواړي

چې د هغو په اړه بحث وکړي. په پای کې یو تن له دې ډلې څخه پایله نورو زده کوونکو ته وایي. ډله ییزې خبرې اترې یـــا مباحثه هغه چلند دی چې زده کوونکو ته وخت ورکوي چې خپل اندونه،عقاید،تجربې له نورو سره شریکې کړي. که چیرې ښوونکی په ډله ییز بحث کې څارنه او نظارت ونکړي، ښایي چې د ډلې وخت په بې ګټو خبرواترو تیر شي. لـــه دې چلنـــد څخه کولای شو، د ټولنیزو مسایلو په زده کولو د تاریخي اتلانو د کړو وړو او یا په انساني بشري جغرافیې پـــورې اړونـــد مسایلو کې کار واخلو.

**۱۰-** پوهنیزه تلنه او کتنه له ښوونځي نه بهر یوه تجربي کړنه ده چې له ټولګي نه بهر تر سره کیږي. د ساري په ډول په ښار کې ګرځیدنه، له یوې فابریکې څخه کتنه، له بازار، کتابتون، تاریخي شیانو، له یوې ادارې، یوې کرنیزې کروندې، یوه کان، یو موزیم او یا یوې جغرافیایي منظرې څخه کتنه او داسې نور. لازمه نه ده چې سیر علمي (پوهنیزه تلنه او کتنه) هرومـــرو د یوه یا څو لرې ځایونو لیدنه کتنه وي، بلکې زده کوونکي د چاپیریال له لیدنې کتنې څخه تجربې زده کړي او کیـــدای شـــي چې سیر علمي وشمیرل شي.

## ۱۱- د پوښتنې او ځواب چلند:

د پوښتنې او ځواب چلند هغه فن دی چې کولای شو له هغه څخه د ټولو لوستونو په وړاندې کولو او تـــدریس کـــې کـــار واخلو. په تیره په هغه وخت کې چې ښوونکی غواړي د زده کوونکو پاملرنه د یوه مفهوم په اړه د تفکر لپـــاره راواړوي، لـــه دې چلند څخه کار اخلي. ممکنه ده چې له دې فن څخه د هغو مطالبو د مرور لپاره چې دمخه ویـــل شـــویدي او یـــا د زده کوونکو د زده کړې د ارزونې لپاره کار واخیستل شي. د هغو پوښتنو ډولونه چې ښوونکی کولای شي هغه رامنځ ته کړي په لاندې ډول یې لنډ او خلاصه کولای شو.

۱– پوښتنه د لنډولو یا خلاصه کولولپاره، مثال: د کوشانیانو لوست ولولئ او لنډ یې کړئ.
۲– تجزیه او تحلیل (شاربل). مثال: څه لاملونه وو چې سکندر ډیرې سیمې ونیسي.

## د زده کوونکو د معلوماتو د ارزونې ستراتیژي:

ارزونه د زده کړې موخو ته د رسیدنې د میزان د تشخیص وسیله ده. ارزونه د چلندونو د بریالیتوب او د زده کړې د کړنو نه یو روښانه انځور ښوونکي ته ورکوي. ټولنیز لوستونه، لکه: نور مضامین له ارزونې نه کار اخلي، خو د موضوع د تفاوت په خاطر له ځینو څخه یې ګټه اخیستل کیږي. له هغه ځایه چې ارزول له روزنیزو رتو او د مهمو پروګرامونو څخه دي، د یو لوست زده کول ددې اړتیا رامنځ ته کوي چې له جمود(تلقین او د معلوماتو له یادونې) څخه ووځي او په ژوندۍ توګه په (بحث،تحلیل،تفسیر او د مسایلو په حل) تبدیل شي.

د ارزونې د ستراتیژۍ ځینې مهمې او برخې په لاندې ډول دي.

## ۱ ـ د تحریری یا د کاغذ او قلم چلند

دغه چلند چې له قلم او کاغذ څخه کار اخلي، یوه له ډیرو او مهمو ستراتیژیو څخه دی چې د زده کوونکو ځواک مني. په ځانګړو کارونو کې یې اندازه کوي. په دې چلند کې زده کوونکي هغو پوښتنو ته چې هغوی ته ورکول شویدی په لیکلي ډول ځواب ورکوي. په فصلي یا کلنۍ ازموینو کې معمولاً له دې چلند څخه کار اخیستل کیږي چې د زده کوونکو د زده کړې تله د یوه ځانګړی پیر لپاره وارزول شي. باید یادونه وشي چې دا ټولې ازموینې په پیژندیزې برخې پورې راچورلې.

## ۲- د کتنې چلند (مشاهده)

په دې چلند کې ښوونکی یا کتونکی خپل ټول حواس زده کوونکي ته متوجه کوي چې هغه په ټاکلی ځای کې وڅاري. هدف له دې څارنې څخه دادی چې هغه معلومات چې د زده کوونکي په اړه یې ترلاسه کړیدي له هغو نه د مهارتونو، سلوک او اخلاقو په اړه چې په زده کوونکي پورې اړوندیږي، کار واخیستل شي.

د ملاحظې او کتنې پر مهال له بیلابیلو وسایلو څخه کار اخیستل کیږي. د ساري په ډول د اندازې اخیستنه چې کله ناکله عددې یا شمیریزه وي او کله بیا غیر عددي یا غیر شمیره ییزه.

وروسته تر هغه چې ښوونکي دغه اطلاعات سره راټول کړل، باید هغه په کمي صورت وارزوي چې د زده کوونکو د قوت او ضعف ټکي بیامومي. د کتنې یا(مشاهدې)په چلند کې له راز راز چک لیست څخه کار اخیستل کیږي. چک لیستونه بیل بیل ډولونه لري. د ساري په ډول:

– د مسایلو په حل کې د زده کوونکو د مهارت د سنجولو چک لیست.

– د زده کوونکو د کړنو د سنجولو چک لیست.

– د ارتباطي مهارتونو د سنجولو چک لیست.

– ښوونکی کولای شي د لوست د تنوع او ډول ډول والي لپاره په خپله د زده کوونکو د کړنو او چلند د کتنې په چک لیست لاس پورې کړي.

پام وکړئ هغه نمونه چک لیست ته چې د مسایلو په حل کې د زده کوونکو د مهارت د اندازه کولو لپاره په کار وړل کیږي

| شمیره | معیار | ضعیف(۱) | منځنی(۲) | ښه(۳) | لوړ(۴) |
|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | چلند | | | | |
| ۲ | د مسلې ځانګړې کول او ارزونه یې | | | | |
| ۳ | وړاندې کول(ارائه) | | | | |
| ۴ | د توکو ګیلۍ کول او ارزونه یې | | | | |
| ۵ | تصمیم نیول | | | | |

## په عمل باندې ولاړ چک لیست

په دې چلند کې زده کوونکي هغه څه چې یې په واقعي ژوند کې زده کړي دي، روښانه کړي او یا هغه څه وکړي څو خپل مهارتونه وښیي. په دې چلند کې هغه معیارونه، لکه: د زده کوونکي توضیحات، د لومړي رول سرته رسول، په ډله کې ګډکار، د فردي کار سرته رسول او نورې کړنې د پام وړګرځي.

د تاریخ په لوست کې د زده کوونکو د کړنو د ارزونې د چک لیست نمونه

| شمیره | معیارونه | منځني | ښه | لوړ(عالي) |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | له دوستانو سره په فصیحه او روانه ژبه اړیکې نیسي. | | | |
| ۲ | د تاریخ له ژبې څخه کار اخلي. | | | |
| ۳ | د ټولو زده کوونکو لورته ګوري. | | | |
| ۴ | له یوه ځواکمن او پیاوړي شخصیت څخه برخمن دي. | | | |
| ۵ | د زده کوونکو پوښتنو ته په جرات او ډاډ ځواب وایي. | | | |
| ٦ | مفاهیم او اصطلاحات تعریفوي. | | | |
| ۷ | د محتوا مهم او رښتې عناصر ټاکي. | | | |
| ۸ | له تاریخي نقشې څخه کار اخلي. | | | |
| ۹ | د یوه صحیح چلند په منظور د زده کړې له موادو څخه په سمه توګه استفاده کوي. | | | |
| ۱۰ | خپل مطلب په یوه ټاکلي وخت کې ترسره کوي. | | | |

## ۳- د ارتباطي مهارتونو د ارزونې چک لیست

دغه چلند له نورو سره د اړیکو د مهارتونو د تر لاسه کولو د ارزونې په منظور په کار وړل کیږي. د ټولنیزو لوستو نصاب د ارتباطي مهارتونو په ودې باندې ولاړ دی په دې ستراتیژۍ کې معلومات د زده کوونکي د ارتباطي کړنو له منځه، د تفکر څرنګوالی او د هغه چلند د مسایلو په حل کې راټولیږي لاندې مثال ته پاملرنه وکړئ.

## د ارتباطي مهارتونو د ارزونې چک لیست نمونه

| شمیره | د اړیکو مهارتونه | هو | نه | |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | ابتکاري افکار نوروته وړاندې کوي. | | | |
| ۲ | کله چې مطلب ورته څرنګندشي، د نورو آندمني او لــه خپلــه انده تیریږي. | | | |
| ۳ | د نورو فکرونو(اندونو)ته درناوی کوي. | | | |
| ۴ | په هغه کار کې چې ورته سپارل شویدی، د مسؤلیت احـــساس کوي. | | | |
| ۵ | له نورو سره ګډ کار کوي. | | | |

پاملرنه: د زده کړې یوه برخه چې په ټولګي کې د زده کوونکو د کړنو پر بنسټ د ښوونکي د کتنې له مخې په ټولګې کـــې ځانګړې کیږي او پاته نور یې د ادارې په تصمیم او پوهنې وزارت په ارز ونې پورې تړاو لري.

# د تاریخ د لوست د اجرایي پروګرام لوازم

## ۱- د اړتیا وړ پوهنیز مرستندوی شیان

توره دړه، تباشیر،مارکر، د ښوونکي لارښود کتاب، ورځپاڼې، مجلې، پوهنیزچارت، فلش کارت. ډول ډول جغرافیایي نقشې، اړونده کتابونه، د امکان په صورت کې کامپیوتر او انترنت. راز راز سلایدونه، دجغرافیایي فلمونو انځورونه تاریخي اطلسونه، د ځمکې کره، د تاریخي لړیو ګرافونه او شجره پاڼه، مستند تاریخي او داستاني فلمونه،د موضوع په اړوند د تاریخي شخصیتونو عکسونه، انځورونه،نقاشې، تاریخي معتبرکتابونه او سر چینې، د مسکوکاتو البومونه، مسکوکات، جغرافیایي کاغذي نقشې او نور.

## د تاریخ له ښوونکي څخه هیلې

### الف. عمومي صلاحیتونه

د تاریخ د لسانس د درجې لرل او یا لږ تر لږه له بکلوریا څخه پورته، په خپلې څانګې کې له وروستیو اطلاعاتو سره اشنایي لرل، د زده کوونکو له سني او ذهني ځانګړتیاوو سره پیژندګلوي، د تدریس له چلندونو سره پیژندګلوي، د هغوی د زده کوونکو له پوهې څخه د ارزونې د څرنګوالي او د تدریس له چلند سره آشنایي چې د ښوونکی له دندې سره مینه ولري او د اخلاقي صلاحیت لرل.

### ب: ځانګړي صلاحیتونه

د تاریخ د درسي مفرداتو سره آشنایي او د بیلابیلو درسونو د تدریس چلندونه.

– د بیلابیلو لوستونو دیادولو لپاره د پلان د جوړولو وړتیا.

د ټولګیو د اداري وړتیا.

د درسي او ممد درسي وسایلو نه د کار اخیستنې صلاحیت.

له ښوونځي نه هیلې:

د پروګرامونو د سرته رسولو لپاره د شرایطو رامنځ ته کول، د لوستیزو کتابونو تیارول، د ښوونکی لارښود، د زده کړې توکي او د زده کوونکو له مشرانو سره د منظمو اړیکو رامنځ ته کول.

د زماني پروګرامونو د اجرا کولو په اړوند د پوهنې وزارت مصوباتو ته پاملرنه.

په ټولګې کې د ښوونکو پرکړنو څار او د ښوونکو لارښوونه.

په ښوونځیو کې د کتابتون رامنځ ته کول.

د کورنیو په ګډې مرستې د ښوونکو د اړتیا وړ کتابونو تیارول.

### له کورنیو څخه غوښتنه

د کوچنیو زده کوونکو د ښوونیز څرنګوالی په اړه د هغوی له کورنیو له مشرانو سره د اړیکو نیول ؛

د زده کوونکو له لوستیز پرمختګ څخه خبر لرل.

د ښوونځیو له اداري سره مرسته.

## د اجتماعیاتو د لوستونو د تدریس یا لوست ورکولو لارښود: تاریخ، جغرافیه، مدنې ښوونې

ددې لارښود په لومړي څپرکي کې تاسې ښاغلي ښوونکي د لوستیز پروګرام له مقدمو او کلیاتو، د لوست ورکولو له چلندونو او ددې پروګرام د ارزونې له څرنګوالي سره آشنا شوئ، په دې څپرکې کې به د تدریس له پنځه کلن پلان او د هر لوست د تدریسولو له چلند او میتود سره اشنا شئ.

### د تدریس کلنی پلان:

دغه پلان دا ښوونه کوي چې تاسو څرنګه د یوه کال په ترڅ کې د یوه لوستیز کتاب محتوا(دننه توکي) په ورځو،اونیو، او میاشتو وویشئ؛ زموږ په هیواد کې د تعلیمي کال پیل په تودو او سړو ولایتونو کې سره توپیر لري؛ په ګرمسیرو ولایتونو کې تعلیمي کال د مني له لومړی سر څخه پیلیږي، او د مرغومي(جدي) دوه اونۍ ازموینې ته بیلې شویدي. او په وروستنۍ اونۍ کې هم زده کوونکي په رخصتۍ ځي، د پسرلي د میاشتو په پای کې یعنې د غبرګولي( جوزا) میاشتې دوه لومړنۍ اونۍ ازموینې ته بیلې شوي دي او زده کوونکي په دوو وروستیو اونیو کې د کال د پای په رخصتۍ ځي. د سړو سیمو په ولایتونو کې تعلیمي کال د وري حمل له دوهمې ورځې څخه پیلیږي. د نیمایي تعلیمي کال په پای کې د چنګاښ(سرطان) میاشتې په دوو وروستیو اونیو کې ازموینې پیلیږي. زده کوونکي د زمري(اسد) میاشتې په دوو اونیو کې له ازموینې نه وروسته په رخصتۍ ځي. په دې سیمو کې د تعلیمي کال د پای ازموینې د لیندۍ(قوس) میاشتي په دوو اونیو کې پیل او تر ازموینې وروسته زده کوونکي د کال تر پایه په رخصتۍ ځي، د تعلیمي کال اوږدوالی په ټول کال کې ۲۸ اونۍ دی. د کلني پلان د تنظیم او جوړولو لپاره د لوستیز کتاب د پاڼو شمیر په ۲۸ شمیر ویشل کیږي.

تر لاسه شوي شمیره دا ښودلای شي چې ښاغلی ښوونکی په اونۍ کې باید څو پاڼې د کتاب تدریس کړي: د هر لوست ورځینی پلان د هر لوست شامل پر ښوونیزو موخو، د لوست ورکولو پر څرنګوالي، د تدریس پر لوازمو(توکو) د زده کوونکو د معلوماتو د ارزونې څرنګوالی، د تدریس کړنې ( د مقدماتي کړنو ترسره کول لکه سترې مه شی او روغبړ او هر کلی، سوبتیا( حاضري) اخیستنه د پخواني تیر لوست پوښتنه، د پاملرنې او هڅونې د حالت رامنځ ته کول، د لوست وړاندې کول او د زده کوونکو د زده کړې د کچې ارزونه، د لوست د متن پوښتنو ته ځواب او یا دلوست پای او یا اضافي معلومات تاسو ګرانو ښوونکو لپاره دي.

**د لومړي لوست د تدریس لارښود پلان**

**د تدریس وخت: دوه درسي ساعتونه**

| ۱- د مطالبو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | افغانستان ته د اسلام راتګ | |
| ټولیزه موخه | افغانستان ته د اسلام د راتګ له څرنګوالي سره د زده کوونکو آشنا کول | |
| ۲- ځانګړې روزنیزې موخې (پوهنیزې، مهارتي، ذهنیتي) | هیله ده د لوست په پای کې زده کوونکي لاندې موخو ته ورسیږي:<br>۱. زده کوونکي دې د اسلام د ظهور په وخت کې د افغانستان عمومي اوضاع سره آشنا شي.<br>۲. زده کوونکي دې د اسلام د ظهور په وخت کې د خلکو د دیني وضعې سره آشنا شي.<br>۳. زده کوونکي دې د اسلام له ښیګڼو څخه د اسلام د ظهور په وخت کې آشنا شي.<br>٤. د تاریخي پېښو د تحلیل د مهارتونو لاسته راوړل.<br>٥. د اسلام دین د ښیګڼو د پېژندلو مهارتونه لاسته راوړل.<br>٦. د اسلام د تاریخ په اړه د علاقې رامنځته کول.<br>۷. په افغانستان کې د اسلام د خپراوي د لومړنیو مجاهدینو سره د علاقې رامنځته کول. | |
| ۳- د تدریس چلندونه | ۱- د ښوونکي خبرې او وضاحت. ۲- د زده کوونکو پوښتنې او ځوابونه | |
| ۴- د تدریس اړین توکي | تخته او تباشیر، کتاب، انځور او نقشه | |
| ۵- د ارزونې چلندونه | په تقریري توګه د لوست په پای کې او په تحریري ډول هغه وخت چې ښوونکی یې ضروري وګڼي. | وخت په دقیقو |
| ٦- د تدریس او زده کړې فعالیتونه | لومړني فعالیتونه:<br>۱. د سلام اچول او احوال پوښتنه.<br>۲. د زده کوونکو او د هغوی د روحي او درسي وضعیت سره آشنایي.<br>۳. د زده کوونکو د حاضری لیدل.<br>د انګیزې رامنځ ته کول:<br>۱. د لومړي لوست په اړه د پوښتنې طرح کول.<br>۲. له کتاب څخه یا د کتاب څخه بهر د انځور ښودل.<br>٤. د شاه دو شمشیره (علیه رحمه) د جومات په اړه توضیحات. | ۱۲ دقیقې<br><br>۸ دقیقې |

<table>
<tr><th>د مطالبو عناوین</th><th>د مطالبو شرح</th><th>وخت</th></tr>
<tr><td>۷- د ښوونکي فعالیتونه</td><td>د زده کوونکو فعالیتونه</td><td>۷۰<br>دقیقې</td></tr>
<tr><td>- ښوونکی د لوست په اړه رڼا اچوي.<br>- له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي.<br>- د نتیجې اخیستل او جمع بندي کول.</td><td>- د ښوونکي څرګندونو ته د زده کوونکو پام<br>- ښوونکي ته د زده کوونکو ځوابونه<br>- زده کوونکي غوږ بږدي او یادداشت نیسي.</td><td></td></tr>
<tr><td>۸- پوښتنو ته ځوابونه او یا په متن کې فعالیتونه</td><td colspan="2">۱- د اسلام د راتګ په وخت کې زموږ د هیواد په شمال کې ترکانو او جنوب کې رتبیل شاهانو حکومت کاوه.<br>۲- دوه بودایي او زردشتي دینونو زیات پیروان درلودل او د لمر پرستی دین هم پیروان درلودل.<br>۳- د بې ځایه دودونو، د زور زیاتي او بې عدالتی، له کبله، خلکو د اسلام د دین هرکلي وکړ.</td></tr>
<tr><td>۹- پوښتنو ته ځواب او وروستي فعالیتونه</td><td colspan="2">د لوست ترڅنګ د افغانستان د اوضاع او د اسلام دین د خپریدو د څرنګوالي په اړه رڼا اچول شوې ده مراجعه دې ورته وشي.</td></tr>
</table>

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

په ۲۱ق/ ٦٤٢ م کې د نهاوند له جګړې څخه وروسته د ساسانیانو د امپراتورۍ په له منځه تلو سره سامانیان نور په پښو ونه دریدل. هغه خنډ چې د اسلام او افغانستان ترمنځ و، له منځه لاړ او عرب مسلمانان د احنف بن قیس په مشرۍ په ۲۲ق کال کې د ایران د طبس له لارې خراسان ته رانوتل او هرات یې ونیو. خو د مسلمانانو زیات پرمخ تګ د دریم خلیفه حضرت عثمان (رض) په وخت کې وشو او عبدالله بن عامر بن کریز د خلیفه له خوا د خراسان مامور شو او زیات فتوحات یې وکړل. نوموړي لومړی نیشاپور ونیو او د هغه له فتحې سره د عربو مسلمانانو لاره هرې خوا ته خلاصه شوه او یوې خواته تر تالقانو پورې او بلې خواته تر سیستان پورې سیمې د اسلام د مجاهدینو لاس ته ورغلې. تر هغه وروسته کابل او بلخ هم د مسلمانانو لاس ته ورغلل. خو هغه تحولات چې د اسلامي خلافت په مرکز کې رامنځته شول، لکه: د دریم خلیفه شهادت او د حضرت علي (رض) د خلافت په وخت کې د ځینو ستونزو له امله چې را منځته شوې مسلمانان اړ شول.

بل ځل د معاویه (رض) په زمانه کې پرمخ تګ وشو خو د افغانستان خلکو د صفاریانو په وخت کې اسلام راوړ، ځکه چې له هغه وروسته یې له دې دین څخه چا مخ وا نه ړاوه. له دې وروسته که کوم حرکت او پاڅون رامنځته شو، د اسلام تر نامه لاندې و او یا هم د اسلامي خلافت په مرکز کې یو لوري څخه د ملاتړ په توګه رامنځته شو...

*د زیاتو معلوماتو لپاره مراجعه وکړئ:*

*۱- فشردهٔ تاریخ افغانستان، دوکتور فاروق انصاري*

*۲- افغانستان بعد از اسلام، عبدالحی حبیبي*

*۳- اصلي منبع فتوح البلدان بلاذري او طبری تاریخ*

## د دویم لوست د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: دوه درسي ساعتونه

| ۱- د مطالبو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | افغانستان د امویانو په دوره کې | |
| تولیزه موخه | د امویانو په دوره کې د افغانستان د عمومي وضعې سره د زده کوونکو آشنا کول. | |
| ۲- ځانګړې روزنیزې موخې (پوهنیزې، مهارتي، ذهنیتي) | هیله ده د لوست په پای کې زده کوونکي لاندې موخو ته ورسیږي:<br>۱. د امویانو له کورنۍ سره د زده کوونکو آشنا کول.<br>۲. د امویانو د واک ته رسیدو له څرنګوالي سره د زده کوونکو آشنا کول.<br>۳. په افغانستان کې د امویانو له سیاست سره د زده کوونکو آشنا کول.<br>٤. د امویانو په زمانه کې له ځینو پاڅونونو سره د زده کوونکو آشنا کول. (زید، ابومسلم خراساني او امیر فولاد)<br>٥. د زده کوونکو په واسطه د تاریخي پیښو د تحلیل د مهارت ترلاسه کول.<br>٦. د زده کوونکو په فکر کې د تاریخي شخصیتونو د پیژندنې لپاره د انګیزې او علاقې رامنځ ته کول. | |
| ۳- د تدریس چلندونه | ۱- د ښوونکي وینا او وضاحت. ۲- د زده کوونکو پوښتنې او ځوابونه | |
| ۴- د تدریس اړین توکي | کتاب، تخته، تباشیر او انځورونه | |
| ۵- د ارزونې چلندونه | په تقریري توګه د لوست په پای او د راتلونکي لوست په پیل کې او په تحریري ډول په هغه وخت کې چې ښوونکی یې وغواړي. | |
| ٦- د تدریس او زده کړې فعالیتونه | لومړني فعالیتونه:<br>۱- د سلام اچول او احوال پوښتنه.<br>۲- د حاضري اخیستل.<br>۳- د تدریس د وسایلو تیارول.<br>د انګیزې رامنځ ته کول:<br>۱- د کتاب او نقشې ښودل.<br>۲- د پیلوونکې پوښتنې طرح. | وخت په دقیقو<br>۱۲ دقیقې<br>۸ دقیقې |

| د مطالبو سرليکونه | د مطالبو شرح | وخت |
|---|---|---|
| **۷- د ښوونکي فعاليتونه** | **د زده کوونکو فعاليتونه** | ۷۰ |
| - د تختې پر مخ د لوست د سرليک ليکل.<br>- د تختې پر مخ د لوست د مهمو نومونو او مطالبو ليکل.<br>- زده کوونکو ته د ښوونکي ځواب<br>- د لوست خلاصه او جمع کول | - د زده کوونکو پام رااړول او ياداشتول.<br>- د زده کوونکو پام او په کتابچه کې د يادداښت نيول.<br>- له ښوونکي څخه د لوست په هکله د زده کوونکو پوښتنې | دقيقې |
| ۸- پوښتنو ته ځوابونه او يا په متن کې فعاليتونه | ۱. ددې امله چې د افغانستان خلك له يوه لوري د اعرابو د نژادي تبعيض له سياست څخه نا خوښې وو او له بله لوري د پاڅونونو مشران يا د اسلام د پيغمبر په کورنۍ پورې تړلې وو لکه ( يحي بن زيد) او يا هم ملي او محلي شخصيتونه وو لکه: ابومسلم خراساني او امير فولاد غوري (سوري).<br>۲. ابومسلم خراساني د جوزجان په سفيدنج کې وزيږيد، هغه د عربو امويانو پر ضد پاڅون وکړ.<br>۳. امير فولاد او امير کروړ د افغانستان په مرکز د غور په ولايت کې امارت درلود.<br>۴. د هماغه دليل له مخې د افغانستان ټولو خلکو له عباسي نهضت څخه ملاتړ وکړ. | |
| **۹- پوښتنو ته ځواب او وروستني فعاليتونه** | د ابومسلم د پاڅون علت: له عباسيانو څخه ملاتړ و هغه د هرات، نيشاپور او همدان له لارې ځان د خلافت مرکز ته ورساوه. | |

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

امويان د قريشو عربو له مهمې کورنۍ څخه دي چې په ځانګړې توګه يې تر اسلام دمخه د حجاز په سيمه کې ښه ژوند درلود. وروسته له هغه چې په ۴۱ ق کال کې د حضرت محمد (ص) د لمسي امام حسن (رض) او حضرت معاويه (رض) د سولې د تړون پر بنسټ د پيغمبر حضرت محمد مصطفی (ص) له کورنۍ څخه قدرت امويانو ته وليږديده. د امويانو د واکمنۍ ستنې نورې هم ټينګې شوې.
اسلام د دوی په زمانه کې خورا زيات خپور شو او د دې آسماني دين مبلغين او مجاهدين افغانستان ته راورسيدل. له اسلام راوړلو وروسته زموږ د هيواد د خلکو په منځ کې د اسلام د پيژندلو او د هغه د لارښوونو او فرمانونو په عملي کولو کې ډيره ليواليتيا رامنځته شوه.

الف: سیاسي او ټولنیز خوځښتونه او نهضتونه یې د امویانو د ځینو والیانو پر ضد پیل کړل، لکه: د ابومسلم پاڅون چې د امویانو د سقوط لامل وګرځید.

ب: د امویانو له مخالفینو څخه یې ملاتړ وکړ چې د هغه له جملې لکه یحیی، زید او یا د عباسي نهضت.

ج: خپل امارتونه یې د امویانو د خلافت ضد حرکتونو سره ملګري کړل، لکه: امیر فولاد او امیر کروړ چې په غور کې یې د امویانو د خلافت پر ضد بیرغ رااوچت کړ او په مجموعي ډول یې خپله نارضایتي د امویانو د خلافت سره وښودله نه له اسلام سره.

*د زیاتو معلوماتو لپاره مراجعه وکړئ:*

*۱- فشردۀ تاریخ افغانستان، دوکتور فاروق انصاري*

*۲- افغانستان در مسیر تاریخ، میر غلام محمد غبار.*

۳- اصلي منبع: *تاریخ طبری، والکامل ابن اثیر.*

**د دریم لوست د تدریس لارښود پلان**

**د تدریس وخت: دوه درسي ساعتونه**

| ۱- د مطالبو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| **د لوست موضوع** | **د افغانستان وضعیت د عباسیانو په دوره کې** | |
| **ټولیزه موخه** | له عباسیانو او د دوی په دوره کې د افغانستان له فرهنګي وضعیت سره د زده کوونکو آشنا کیدل. | |
| **۲- ځانګړې روزنیزې موخې (پوهنیزې، مهارتي، ذهنیتي)** | هیله ده د لوست په پای کې زده کوونکي لاندې موخو ته ورسیږي:<br>۱. د عباسیانو له نسب سره د زده کوونکو آشنایي.<br>۲. د عباسیانو د اقداماتو سره په افغانستان کې د زده کوونکو آشنایي.<br>۳. له هغو کورنیو او شخصیتونو سره چې په افغانستان کې یې له عباسیانو سره همکاري کوله د زده کوونکو آشنایي.<br>٤. د عباسیانو په دوره کې د افغانستان له فرهنګي وضعې سره د زده کوونکو آشنایي.<br>٥. د تاریخي پېښو په تحلیل کې د مهارت لاسته راوړل.<br>٦. له تاریخي نقشې څخه د ګټې اخیستنې د مهارت لاسته راوړل.<br>۷. د افغانستان له تاریخي شخصیتونو او کورنیو سره د علاقې رامنځ ته کول. | |
| **۳- د تدریس چلندونه** | ۱- د ښوونکي وضاحت او خبرې. ۲- د زده کوونکو پوښتنې او ځوابونه | |
| **۴- د تدریس اړین توکي** | کتاب، تخته، تباشیر، انځورونه او نقشه | |
| **۵- د ارزونې چلندونه** | په تقریري توګه د لوست په پای کې او د سوال او ځواب په ډول د لوست په پیل کې | |
| **٦- د تدریس او زده کړې فعالیتونه** | لومړني فعالیتونه:<br>۱- د سلام اچول او احوال پوښتنه<br>۲- حاضري<br>د انګیزې رامنځ ته کول:<br>۱- د لوست لومړنۍ پوښتنه<br>۲- د جغرافیایي نقشې ښودل او له هغې څخه د پوښتنو طرحه کول. | وخت په دقیقو<br>۱۲ دقیقې<br><br><br><br>۸ دقیقې |

| د مطالبو عناوين | د مطالبو شرح | وخت |
|---|---|---|
| **۷- د ښوونکي فعاليتونه** | **د زده کوونکو فعاليتونه** | **۷۰** |
| - د لوست په هکله د ښوونکي وضاحت<br>- له زده کوونکو څخه د ښوونکي پوښتني<br>- د مطلبونو بشپړول د ښوونکي په واسطه د نتيجې اخيستل او جمع بندي کول. | - د ښوونکي وضاحت ته د زده کوونکو پام<br>- د ګروپ په منځ کې د زده کوونکو بحث او خبرې اترې<br>- د ښوونکي پوښتنو ته د زده کوونکو ځوابونه | **دقيقې** |
| **۸- پوښتنو ته ځوابونه او يا په متن کې فعاليتونه** | ۱- د عباسيانو اصلي شعار: د خدای (ج) پر کتاب، او د رسول الله(ص) پر سنت عمل کول.<br>۲- محمد بن موسی ۳- جعفر بن محمد بلخي ٤- احمد بن سهل بلخي<br>٥- د نوبهار اورتون په بلخ کې موقعيت لري.<br>٦- عباسيانو له امويانو څخه د خلکو د کرکې له امله زموږ په هيواد کې نفوذ پيدا کړ. | |
| **۹- پوښتنو ته ځواب او وروستني فعاليتونه** | عباسيانو ته د افغانستان د خلکو مهم خدمتونه: د عباسيانو په نهضت کې ګډون، د امويانو د نظام نسکورول او د عباسيانو په اداري نظام کې برخه اخيستل و. | |

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**:

د بني عباس کورنۍ په ډېره ښه توګه وکولای شول چې د امويانو د ضعف ټکي وپيژني او په پټه توګه د خپلو ملاتړو يوه لويه شبکه د اسلام مختلفو سيمو او له هغې جملې څخه خراسان (افغانستان) ته وليږي.

*د زياتو معلوماتو لپاره کولای شئ لاندې منابعو ته مراجعه وکړئ:*

*۱. فشردهٔ تاريخ افغانستان، دوکتور فاروق انصاري.*

*۲. افغانستان در مسير تاريخ، مير غلام محمد غبار.*

*۳. اصلي منبع، تاريخ يعقوبي، احمد بن ابي يعقوب.*

**د څلورم لوست د تدریس لارښود پلان**

**د تدریس وخت: دوه درسي ساعتونه**

| ۱- د مطالبو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | د مسلمانو عربو او د افغانستان د خلکو اغېزې يو پر بل | |
| ټولیزه موخه | د مسلمانو عربو او د افغانستان د خلکو له دوه اړخيزه اغيزو سره د زده کوونکو آشنايي. | |
| ۲- ځانګړې روزنيزې موخې (پوهنيزې، مهارتي، ذهنيتي) | هيله ده د لوست په پای کې زده کوونکي لاندې موخو ته ورسيږي:<br>۱. د اسلام له ښيګڼو سره د زده کوونکو آشنايي<br>۲. د افغانستان خلکو ته د اسلام او د عربو له خدمتونو سره د زده کوونکو آشنايي<br>۳. اسلام ته د افغانستان د خلکو له خدمتونو سره د زده کوونکو آشنايي<br>٤. د تاريخي مسايلو د تحليل د مهارت لاسته راوړل<br>٥. د اسلام او د افغانستان د اسلامي فرهنګ او تمدن سره د علاقې رامنځ ته کول. | |
| ۳- د تدريس چلندونه | ۱- د ښوونکي خبرې اترې او وضاحت. ۲- د زده کوونکو پوښتنې او ځوابونه | |
| ۴- د تدريس اړين توکي | کتاب، تخته، تباشير او انځورونه | |
| ۵- د ارزونې ډول | ۱- په تقريري توګه د لوست په پای کې<br>۲- په تحريري توګه د تعليمي کال په پای کې | وخت په دقيقو |
| ٦- د تدريس او زده کړې فعاليتونه | لومړني فعاليتونه او د انګيزې رامنځ ته کول:<br>۱- د سلام اچول او د احوال پوښتنه<br>۲- انځور ښودل.<br>۳- د پوښتنو رامنځ ته کول.<br>٤- د خاطرې شعر، لطيفې او يا بيلګې ويل. | ۱۲ دقيقې<br><br><br>۸ دقيقې |

<table>
<tr><th>د مطالبو عناوین</th><th>د مطالبو شرح</th><th>وخت</th></tr>
<tr><td>۷- د ښوونکي فعالیتونه</td><td>د زده کوونکو فعالیتونه</td><td>۷۰</td></tr>
<tr><td>- د لوست په اړه د ښوونکي رڼا اچول.<br>- له زده کوونکو څخه د ښوونکي پوښتنه<br>- د نتیجې اخیستل او جمع بندي کول.</td><td>- د ښوونکي وینا ته د زده کوونکو پام<br>- د ښوونکي پوښتنو ته د زده کوونکو ځوابونه<br>-د زده کوونکو غوږ نیول او د یاداشتونو اخیستل.</td><td>دقیقې</td></tr>
<tr><td>۸- پوښتنو ته ځوابونه او یا په متن کې فعالیتونه</td><td colspan="2">۱. د اسلام تر ټولو مهمه اغیزه، د افغانستان خلکو ته هویت وربخښل و.<br>۲. له دې کبله چې د علم انحصار د یوې خاصې ډلې له خوا له منځه ولاړ او زده کړه عامه وګرځیده.<br>۳. هو، ځکه چې اسلام هر ډول تبعیضونه او توپیرونه باطل اعلام کړل او ټول خلک یې یووالي ته راوبلل.<br>٤. اسلام راغی زموږ پیژندنې ته یې بدلون ورکړ او موږ ته یې یووالی او وحدت راوباښه.</td></tr>
<tr><td>۹- پوښتنو ته ځوابونه او وروستي فعالیتونه</td><td colspan="2">افغانستان ته د اسلام خدمتونه:<br>۱. خلکو ته د نوې پیژندنې ورکول.<br>۲. د یووالي او وحدت ورکول.<br>۳. د یوې خاصې ډلې له خوا د علم د انحصار ماتول.<br>٤. د ظالمو واکمنانو له منځه وړل.<br>اسلام ته د افغانستان د خلکو خدمتونه:<br>۱. د اسلام منل.<br>۲. د اسلام د خپرولو په لاره کې جهاد<br>۳. په اسلامي علمي نهضت کې برخه اخیستل او د اسلامي تمدن د قصر د بنسټ په ایښودلو کې ګډون</td></tr>
</table>

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

ښکاره ده هغه خدمت چې یوه لاره یا مسلك یې د یو ملت لپاره کولای شي په چټکه توګه د یوې اړتیا د پوره کولو په توګه نه دی. د ساري په ډول، لکه: په یوه جګړه کې چې سرتیري د نورو عسکرو مرستې ته استول کیږي، یا لکه: په وچکالۍ او قحطۍ کې د ډوډۍ او د خوړو د توکو واردول. بلکې په دې کې ده چې د هغوی په فکر او روح کې یو ګټور بدلون منځ ته راشي، د دوی تفکر نوی کړي. د دوی اخلاق او تربیه ښه کړي او زاړه رسمونه او رواجونه له منځه یوسي او د هغه پر ځای نوي دودونه او نظامونه ځای پر ځای کړي، هغوی ته اعلی ایمان او عقیده ورکړي، د کار او زحمت چټکتیا، د پوهې غوښتنه، د ښو کارونو کول او ځان تیریدنه منځ ته راوړي. اسلام دا ټول شیان زموږ خلکو ته ورکړل، خو هغه خدمتونه چې یو ملت یې یو دین یا یوې طریقې ته کوي هغه دا دي چې د هغه دین د تبلیغولو، رواجولو او د هغه د فرهنګ د خپرولو په لار کې کوښښ کوي. د هغه د مفاهیمو توضیح او تفسیر کې میړانه او ژبې ته یې خدمت کوي، نور ملتونه له هغه سره بلدوي او خپل ځان او مال سره له هغه نه ساتنه کوي، د هغه په لار کې ځان تیریدنه او جهاد کوي. زموږ خلکو په پیل کې تقریباً په پورتنیو ټولو حالاتو کې خپل اخلاص او اراده وښودله.

*د لازیاتو معلوماتو د لاسته راوړلو لپاره لاندې کتابونه ولولئ:*

۱- *افغانستان بعد از اسلام- عبدالحی حبیبي.*

۲- *فشرده تاریخ افغانستان، دوکتور فاروق انصاري.*

**د (پنځم) لوست د تدریس لارښود پلان**

**د تدریس وخت: دوه درسي ساعتونه**

| ۱- د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرح | |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | طاهریان، صفاریان او سامانیان | |
| تولیزه موخه | د طاهریانو، صفاریانو او سامانیانو له حکومتونو سره د زده کوونکو آشنایي | |
| ۲- ځانګړې روزنیزې موخې (پوهنیزې، مهارتي، ذهنیتي) | هیله ده د لوست په پای کې زده کوونکي لاندې موخو ته ورسیږي:<br>۱. د پورتنیو درې ګونو حکومتونو له جوړېدو سره د زده کوونکو آشنا کول.<br>۲. یو بل ته د پورتنیو حکومتونو د واک سپارلو له څرنګوالي سره د زده کوونکو آشنا کول.<br>۳. د پورتنیو حکومتونو له مهمو سیاسي او فرهنګي اقداماتو سره د زده کوونکو آشنا کول.<br>٤. د پورتنیو حکومتونو له مهمو پادشاهانو او مشرانو سره د زده کوونکو آشنا کول.<br>٥. د تاریخي مسایلو د تحلیل مهارتونه ترلاسه کول.<br>٦. له تاریخي اطلس څخه د ګټې اخیستنې مهارت ترلاسه کول.<br>۷. د هیواد له تاریخي کورنیو سره د علاقې منځ ته راوړل. | |
| ۳- د تدریس چلندونه | ۱- د ښوونکي وینا او وضاحت. ۲- د زده کوونکو پوښتنې او ځوابونه | |
| ۴- د تدریس توکي | درسي کتاب، تخته او تباشیر، انځور او نقشه | |
| ۵- د ارزونې چلندونه | په تقریري توګه د لوست په پای کې، په تحریري ډول د تعلیمي دورې په پای کې | |
| ٦- د تدریس او زده کړې فعالیتونه | لومړني فعالیتونه او د انګیزې رامنځ ته کول:<br>۱. د سلام اچول او د احوال پوښتنه<br>۲. د انځور ښودل.<br>۳. د داخلیدو د پوښتنې طرح کول.<br>٤. له نیمګړې نقشې نه کار اخیستل. | وخت په دقیقو<br>۲۰ دقیقې |

| د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرح | وخت |
|---|---|---|
| **۷- د ښوونکي فعالیتونه** | **د زده کوونکو فعالیتونه** | ۷۰<br>دقیقې |
| ۱. د تختې پر مخ د لوست سرلیک لیکل.<br>۲. د تختې پر مخ د مهمو مطالبو او نومونو لیکل.<br>۳. د زده کوونکو پوښتنو ته د ښوونکي ځواب، د لوست جمع بندي او خلاصه کول. | - د زده کوونکي پام او د سرلیک یاداشت کول.<br>- د زده کوونکو پام او د یاداشتونو نیول.<br>- له ښوونکي نه د لوست په هکله د زده کوونکو پوښتنه | |
| **۸- پوښتنو ته ځوابونه او یا په متن کې فعالیتونه** | ۱. طاهریان په اصل کې د پوشنګ یا د هرات د زنده جان له خلکو څخه وو او وروسته له دې نه چې د خلیفه ورور (امین) یې مړ کړ، شهرت یې پیدا کړ او لوړو مقاماتو ته ورسیدل.<br>۲. طاهر له عباسي خلافت څخه د خپلواکۍ د اعلان په موخه د خلیفه نوم له خطبې لرې کړ.<br>۳. عیارانو له صفاري یعقوب لیث نه ملاتړ وکړ.<br>٤. د یعقوب د ډیرو غوښتنو له امله، د ده اړیکې له خلیفه سره خرابې شوې.<br>۵. د بخارا ښار د سامانیانو پلازمینه وه.<br>٦. د سامانیانو مهم پاچا امیر نصر نوم درلود او د هغه په دربار کې د پوهانو ډیرو ډلو شتون درلود.<br>۷. له دې امله چې ځایي واکمنانو قدرت ترلاسه کړ، د ساماني دولت نظم او اداره له ستونزو سره مخ شوه. | |
| **۹- پوښتنو ته ځواب او وروستي فعالیتونه** | - د سامانیانو د نسکوریدو اصلي علت د ځایي واکمنانو له لوري د قدرت نیول و، د دې واکمنانو یو تن آلپ تګین نوم درلود. هغه د غزنوي لړۍ د واکمنۍ بنسټ کیښود. | |

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

د طاهریانو امارت او واکمنی د نیمې پیړۍ نه زیات دوام وکړ. د هغوی د حکومت مرکز په پیل کې په مرو کې و او وروسته نیشاپور ته انتقال شو. سره له دې چې طاهر هڅه وکړه چې د خلیفه نوم له خطبې څخه لرې کړي، خو ټول طاهري امراو د عباسي خلیفه په وړاندې وفاداره پاتې شول. د طاهریانو قدرت د عبدالله بن طاهر په زمانه کې (۲۳۰ – ۲۱۳ ق) لوړې پوړې ته ورسید.

سامانیانو د خپل نسب، د سامانیانو د عصر نامتو سردار بهرام چوبین ته رساوه. د سامانیانو د دورې مهم ټکی د فارسي ژبې پرمختګ و. ځکه چې دوی دا امکانات برابر کړل چې د فارسي ژبې ستر شاعران لکه رودکي سمرقندي او دقیقي بلخي د فعالیت موقع پیدا کړي. همدارنګه د سامانیانو په دربار کې فارسي ژبه ومنلې شوه او همدا ژبه له لږو تغیراتو سره تراوسه پورې د (دری) په نوم پرځای پاتې ده.

د صفاریانو په باب مهم مطلب، د بغداد له خلافت سره د هغوی نښته ده، ځکه چې یعقوب لیث د بغداد د ادارې غوښتونکی و او هغه جګړه چې رامنځ ته شوه یعقوب لیث پکې ډیره سخته ماته وخوړه او وروسته له ډیرې غصې مړ شو.

*د لا زیاتو معلوماتو د ترلاسه کولو لپاره لاندې منابعو ته مراجعه وکړئ:*

1. *فشردهٔ تاریخ افغانستان، دوکتور فاروق انصاري.*

*ګردیزي تاریخ (زین الاخبار) عبدالحی بن ضحاک ګردیزي. افغانستان در مسیر تاریخ، میر غلام محمد غبار*

**د (شپږم) لوست د تدریس لارښود پلان**

**د تدریس وخت: دوه درسي ساعتونه**

| ۱- د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرح | |
|---|---|---|
| **د لوست موضوع** | غزنویان او سلجوقیان | |
| **ټولیزه موخه** | د غزنویانو او سلجوقیانو له لړیو سره د زده کوونکو آشنا کول | |
| **۲- ځانګړې روزنیزې موخې (پوهنیزې، مهارتي، ذهنیتي)** | هیله ده د لوست په پای کې زده کوونکي لاندې موخو ته ورسیږي:<br>۱. د غزنویانو او سلجوقیانو له نژاد سره د زده کوونکو آشنا کول.<br>۲. د غزنویانو د واک ته رسیدو له څرنګوالي سره د زده کوونکو آشنا کول.<br>۳. د غزنویانو له مهمو اغیزمنو شاهانو (محمود او مسعود) سره د زده کوونکو آشنایي.<br>٤. د غزنویانو د فرهنګي وضعې او مهمو ادبي او فرهنګي شخصیتونو سره د زده کوونکو آشنا کول.<br>۵. له غزنویانو څخه سلجوقیانو ته د قدرت د لیږد له څرنګوالي سره د زده کوونکو آشنایي.<br>٦. د سلجوقي کورنۍ د مهمو پاچاهانو او شخصیتونو سره د زده کوونکو آشنایي.<br>۷. د سلجوقیانو د سقوط له لاملونو سره د زده کوونکو آشنا کول.<br>۸. د سلجوقیانو له فرهنګي خدمتونو سره د زده کوونکو آشنا کول.<br>۹. په زده کوونکو کې له نقشې څخه د ګټې اخیستلو او د غزنوي دورې د واقعاتو د تحلیل د وړتیا رامنځته کول.<br>۱۰. د اسلام د خپریدو په موخه په هند باندې د محمود د لښکر ایستلو په اړه د انګیزې رامنځته کول. | |
| **۳- د تدریس چلندونه** | ۱- د ښوونکي خبرې او وضاحت. ۲- د ښوونکي او زده کوونکو پوښتنې او ځوابونه | |
| **۴- د تدریس توکي** | درسي کتاب، تخته او تباشیر، انځور او نقشه | |
| **۵- د ارزونې چلندونه (شیوه)** | په شفاهي توګه د لوست په پای کې او همدارنګه د پوښتنې او ځواب په توګه د راتلونکي لوست په پیل کې. | |
| **٦- د تدریس او زده کړې فعالیتونه** | لومړني فعالیتونه او د انګیزې رامنځ ته کول:<br>۱. د سلام اچول او د احوال پوښتنه<br>۲. د غزنوي او سلجوقي لړیو په اړه پوښتنه<br>۳. په هندوستان کې د اسلام د خپریدو په اړه پوښتنه<br>٤. د کتاب او یا جغرافیایي نقشې له مخې د غزنویانو او سلجوقیانو د قلمرو د نقشې ښودل. | وخت په دقیقو<br>۲۰ دقیقې |

| د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرح | | وخت |
|---|---|---|---|
| | **۷- د ښوونکي فعالیتونه** | **د زده کوونکو فعالیتونه** | ۷۰ |
| | ۱. د لوست په هکله د ښوونکي وضاحت<br>۲. د ښوونکي پوښتنې له زده کوونکو څخه د لوست د ورودي برخې په اړه.<br>۳. د ښوونکي په واسطه د لوست توضیح.<br>٤. جمع بندي او د لوست خلاصه کول. | - د ښوونکي څرګندونو ته د زده کوونکو پام.<br>- د ښوونکي پوښتنو ته د زده کوونکو ځوابونه.<br>- د لوست متن ته د زده کوونکو پام اړول. | دقیقې |
| **۸- پوښتنو ته ځوابونه او یا په متن کې فعالیتونه** | ۱. غزنویان او سلجوقیان د ترک نژاد څخه وو.<br>۲. د غزنوي سردارانو ترمنځ اختلافاتو د سلطان مسعود غزنوي بې تدبیرۍ او د سلجوقیانو ترمنځ د اتفاق او یووالي له امله د غزنویانو ماته رامنځته او بری د سلجوقیانو په برخه شو.<br>۳. د غزنویانو او سلجوقیانو اختلاف خاصتاً د سلطان محمود غزنوي په واسطه د سلجوق د زوی اسرائیل له نیول کیدو وروسته د دې دوو کورنیو د شخړو علت و.<br>٤. طغرل بیګ او آلپ ارسلان.<br>۵. د سلجوقیانو قلمرو د شهزاده ګانو ترمنځ وویشل شو. له همدې امله هغوی کمزوري شول. | | |
| **۹- پوښتنو ته ځواب او وروستي فعالیتونه** | د غزنویانو په عصر کې د غزنې، ژبې او فرهنګ د پرمختګ او ودې علت، د غزنوي دربار په ځانګړې توګه د سلطان محمود غزنوي پام علومو او د دری ژبې او فرهنګ ته و. لاس ته راغلې شتمنۍ (ثروت) د سلجوقیانو په دوره کې له هند څخه د فارسي ادب او ژبې د پراختیا لامل شوه، د سلجوقیانو پام دری ادب او ژبې ته او هم د سلجوقیانو په واسطه د لښکر ایستلو او فتوحاتو په لړ کې د دې ژبې لیږدول. | | |

## د ښوونکي لپاره اضافي معلومات

د محترمو همکارانو او ښوونکو پاملرنه لاندنيو تکميلي معلوماتو او اطلاعاتو ته رااړوو:

له يوه نظره، غزنويان او سلجوقيان د ماوراء النهر له ترکانو څخه شمېرل کيږي. له هغو څخه سلجوقيان له ترکمنانو څخه حسابيږي چې د ترک توکم يوه څانګه ده. په واک کې د ترکانو د حضور سابقه د عباسي معتصم بالله زمانې ته رسيږي څکه چې هغه د ايراني او عرب عناصرو پرځای چې په عباسي خلافت کې يې نفوذ درلود پر ترکانو باندې اتکا وکړه. له دې وخت څخه پخوا عرب او ايراني عناصرو نفوذ درلود. د عباسيانو نه وروسته سامانيانو هم له ترکانو څخه استفاده وکړه او وليدل شول چې د دوی په دربار کې ترکان لوړو پوځي مقامونو او حتی د سرداری درجې ته ورسيدل. له دغو سردارانو څخه يو هم آلپ تګين و چې افغانستان يې د دولت د جوړولو لپاره مناسب وباله او دې خوا ته يې مخه کړه، د ده زوم سبک تګين، د هغې موخې پايلې ته ورساوه او د غزنوي حکومت لمنه يې تر هنده پورې ورسوله.

ترکانو له عباسيانو څخه کلک ملاتړ وکړ هغوی له مذهبي پلوه ساده مسلمانان وو او ددې لپاره چې تازه مسلمانان شوي وو ډېر تعصب يې درلود او د دين او مذهب تر نامه لاندې يې په هند او خراسان کې زيات او ځينې له تاو تريخوالي ډک اقدامات سرته ورسول.

ضمناً (آلپ) په ترکي ژبه قهرمان ته ويل کيږي او (سبک) په ترکي ژبه د شاهين په څير د يوې وړوکې مرغۍ نوم دی. تګين په ترکي ژبه کې د ساري او ډول معنا ورکوي.

د زياتو معلومات لپاره وګورئ:

١- تاريخ غزنويان، د کليفورډ ادموند پاسورث ليکنه.

٢- تاريخ بيهقي، ابوالفضل بيهقي.

٣- سلطنت غزنويان، خليل الله خليلي.

## د (اووم) لوست د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: دوه درسي ساعتونه

| ۱- د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرح | |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | غوریان او خوارزمشاهیان | |
| ټولیزه موخه | د غوریانو او خوارز شاهیانو له لړیو سره د زده کوونکو آشنا کول | |
| ۲- ځانګړې روزنیزې موخې (پوهنیزې، مهارتي، ذهنیتي) | هیله ده د لوست په پای کې زده کوونکي لاندې موخو ته ورسیږي:<br>۱. د غوریانو او خوارزم شاهیانو له اصلي ټاټوبي سره د زده کوونکو آشنا کول.<br>۲. د غوریانو او خوارزم شاهیانو د دولتونو د جوړیدو له څرنګوالي سره د زده کوونکو آشنا کول.<br>۳. د غوریانو او خوارزم شاهیانو د دورې له تاریخي شخصیتونو سره د زده کوونکو آشنا کول.<br>٤. د غوریانو او خوارزم شاهیانو د کار له پای سره د زده کوونکو آشنا کول.<br>٥. د تاریخي پیښو د څیړنې د مهارت لاسته راوړل.<br>٦. له خوارزم شاهیانو سره د غوریانو د اړونده مسایلو د ارتباط ورکولو د مهارت لاسته راوړل.<br>٧. د هیواد د تاریخ په اړه د علاقې رامنځ ته کول.<br>٨. د هیواد د مهمو تاریخي شخصیتونو په اړه د علاقې رامنځ ته کول. | |
| ۳- د تدریس چلندونه | ۱- د ښوونکي وینا او وضاحت ۲- په ډله ییزه توګه زده کړه | |
| ۴- د تدریس توکي | تخته او تباشیر، درسي کتاب، انځور او نقشه | |
| ۵- د ارزونې چلندونه (شیوه) | په تقریري توګه د لوست په پای کې یا په راتلونکې ورځ او په تحریري توګه د لوست په پای کې | |
| ٦- د تدریس او زده کړې فعالیتونه | لومړني فعالیتونه او د انګیزې رامنځ ته کول:<br>۱. د سلام اچول او د احوال پوښتنه<br>۲. د نوي لوست په اړه د پوښتنې طرح کول.<br>۳. د پورتنیو لړیو د اصلي ټاټوبي د نقشې ښودل.<br>٤. د کتاب له منځه د انځور ښودل. | وخت په دقیقو<br>۲۰ دقیقې |

| د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرح | | وخت |
|---|---|---|---|
| ۷- د ښوونکي فعالیتونه | | د زده کوونکو فعالیتونه | ۷۰ دقیقې |
| ۱. د ښوونکي له خوا د پوښتنې طرح کول.<br>۲. د ښوونکي په واسطه د لوست توضیح<br>۳. له زده کړې څخه د ډاډ د ترلاسه کولو په موخه د پوښتنو طرح کول. | | – د زده کوونکو د ډلو جوړول چې په سلا سره د ډلې استازی د ښوونکي پوښتنې ته ځواب ووایي.<br>– د زده کوونکو پام د ښوونکي لوست ته<br>– د زده کوونکو ځوابونه | |
| ۸- پوښتنو ته ځوابونه او یا په متن کې فعالیتونه | ۱. د غوریانو د اسلام راوړنې سابقه، د حضرت علی (رض) د خلافت زمانې ته رسیږي.<br>۲. امیر فولاد، امیر محمد سوري او سلطان غیاث الدین د غوریانو له مهمو پادشاهانو څخه دي.<br>۳. د علاء الدین محمد په زمانه کې د خوارزم شاهیانو قلمرو، د هندوستان د سند له سیمې څخه تر عراق پورې رسیده.<br>٤. خوارزم شاهیان د مغولانو په واسطه رانسکور شول.<br>٥. غزنوي محمود په غور باندې لښکر وویسته او امیر محمد سوري یې اسیر کړ. | | |
| ۹- پوښتنو ته ځواب او وروستي فعالیتونه | د غوریانو ټاټوبی د هرات ترڅنګ د غور سیمه وه او د خوارزم شاهیانو ټاټوبی، په منځنۍ آسیا کې د خوارزم ښار و. | | |

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

**الف- غوریان:**

د غور امیران، په آل شنسب یا شنسبیه باندې هم مشهور دي، هغوی په دوو ډلو سره ویشل کیږي: ۱- یوې ډلې چې په غور واکمني وکړه او پلازمینه یې فیروزکوه و. ۲- بله ډله چې د غور په شمال کې پرته ده په تخارستان یې حکومت وکړ او پلازمینه یې بامیان و. د سلطان محمود غزنوي له خوا غوریان په کلکه وځپل شول خو د دوی له کورنۍ څخه علاءالدین حسین په ٥٥٦ ق کال کې د غزنویانو په واسطه د خپل ورور د وژنې د غچ اخیستنې په موخه، د غزني ښار ته اور ورته کړ او په علاءالدین جهان سوز باندې مشهور شو. سلطان غیاث الدین د علاءالدین وراره و، هغه د خپل ورور شهاب الدین په مرسته، د غوریانو د حکومت لمنه د کرمان تر سنده پورې ورسوله او په ٥٧٩ ق کال کې یې لاهور هم ونیو.

**ب- خوارزم شاهیان:**

خوارزم د ماوراءالنهر په لویدیځ لور د خراسان په شمال کې موقعیت درلود چې مسلمان ترکان پکې میشت وو، خوارزم په څلورمه هجري پیړۍ کې له مهمو فرهنګي مراکزو څخه و او ابوریحان بیر وني هلته ژوند کاوه.

د دوی نامتو پاچا علاءالدین محمد نوم درلود چې په دې بریالی شو کرمان او سیستان د سند رود تر غاړو پورې ونیسي او په ۶۱۲ ق کال کې یې غوري دولت رانسکور کړ. د خوارزم شاهي دولت قلمرو په ختیځ کې تر هند او په لویدیځ کې تر عراق پورې رسیده.

د دغه دولت عمر لنډ و ځکه چې مغولانو په ۶۱۷ ق کال کې ځانونه خوارزم ته ورسول او هغه ښار یې ونیو.

خوارزم شاهیانو د عباسي خلیفه ګانو سره ښې اړیکې نه درلودې، په همدې دلیل ویل کیږي چې مغولانو د عباسي خلیفه په تشویق او یا له چوپتیا څخه په استفادې د خوارزم شاهیانو پر قلمرو باندې یرغل وکړ.

*د زیاتو معلوماتو لپاره وګورئ:*

۱. *تاریخ فشردهٔ افغانستان، دوکتور فاروق انصاري.*

۲. *اصلي منبع: تاریخ جهانګشای جوینی او د سیرت جلال الدین کتاب.*

*افغانستان در مسیر تاریخ (میر غلام محمد غبار).*

**د (اتم) لوست د تدریس لارښود پلان**

**د تدریس وخت: دوه درسي ساعتونه**

| ۱- د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرح | |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | مغولان، تیموریان او آل کرت | |
| ټولیزه موخه | د زده کوونکو آشنایي په افغانستان کې د تیموریانو، آل کرت او مغولانو له حکومتونو سره. | |
| ۲- ځانګړې روزنیزې موخې (پوهنیزې، مهارتي، ذهنیتي) | هیله ده د لوست په پای کې زده کوونکي لاندې موخو ته ورسیږي:<br>۱. د مغولانو او په افغانستان باندې د هغوی د یرغل له څرنګوالي سره د زده کوونکو آشنا کول.<br>۲. د تیموریانو د حکومت له جوړېدو سره د زده کوونکو آشنا کول.<br>۳. د آل کرت د حکومت له جوړېدو سره د زده کوونکو آشنا کول.<br>٤. د مغولانو، تیموریانو او آل کرت د حکومتونو له مهمو سیاسي او فرهنګي اقداماتو سره د زده کوونکو آشنا کول.<br>۵. د تاریخي پېښو د پېژندنې او تحلیل د مهارت ترلاسه کول.<br>٦. له تاریخي اطلس څخه د ګټې اخیستنې د مهارت ترلاسه کول.<br>۷. د هیواد د تېر تاریخ او تاریخي شخصیتونو په اړه د لیوالتیا رامنځ ته کول.<br>۸. د پردیو حکومتونو او د هغوی د کورنیو همکارانو په وړاندې د کرکې د روحیې رامنځ ته کول. | |
| ۳- د تدریس چلندونه | ۱- د ښوونکي وینا او وضاحت. ۲- د ښوونکي او زده کوونکو پوښتنې او ځوابونه. | |
| ۴- د تدریس توکي | درسي کتاب، تخته او تباشیر، انځور او نقشه. | |
| ۵- د ارزونې چلندونه (شیوه) | ۱- په تقریري توګه د لوست په پای کې او د راتلونکي لوست په پیل کې ۲- په تحریري ډول د تعلیمي دورې په پای کې. | |
| ٦- د تدریس او زده کړې فعالیتونه | لومړني فعالیتونه او د انګیزې رامنځ ته کول:<br>۱. د سلام اچول او د احوال پوښتنه.<br>۲. د لوست ورودي پوښتنه.<br>۳. د مغولانو او تیموریانو په دوره کې د افغانستان د تاریخي نقشې ښودل. | وخت په دقیقو<br>۲۰ دقیقې |

| وخت | د مطالبو شرح | | د مطالبو سرليکونه |
|---|---|---|---|
| ۷۰ دقيقې | **د زده کوونکو فعاليتونه** | **۷- د ښوونکي فعاليتونه** | |
| | - د ښوونکي څرګندونو ته د زده کوونکو پام<br>- په ډله کې د زده کوونکو خبرې اترې ښوونکي ته، د يو زده کوونکي ځواب<br>- د زده کوونکو غوږ نيول او ياداشت کول. | ۱. د لوست په اړه د ښوونکي وضاحت<br>۲. له زده کوونکو څخه د ښوونکي پوښتنه<br>۳. د ښوونکي جمع بندي او د نتيجې اخيستل. | |
| ۱. د مغولانو د ژوند ډول قبايلي و او هر وخت يې له يو ځای نه بل ځای ته کډه کوله.<br>۲. د چنګيز خان د مقرراتو مجموعې ياسا نوم درلود.<br>۳. عباسي خليفه د هولاکو خان په واسطه په قتل ورسيد.<br>٤. آل کرت د مغولانو په وړاندې د همکارۍ د سياست لاره مخکې ونيوله.<br>۵. کمال الدين بهزاد، عبدالرحمن جامي، علی شير نوايي | | | **۸- پوښتنو ته ځوابونه او يا په متن کې فعاليتونه** |
| د درسي کتاب د نقشو او د تاريخي اتلس نه په استفادې سره تاسو کولای شئ چې پورتنې ځايونه وښاياست. | | | **۹- پوښتنو ته ځواب او وروستي فعاليتونه** |

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

نامساعد اقتصادي موقعيت، د نفوسو زياتوالي او د اوبو او د هوا خرابوالي، د منځنۍ آسيا خلك تل مهاجرت ته اړ ايستل. دغه مهاجرتونه او انساني حرکتونه په دوو لورو کې ترسره کيدل، لومړی د ختيځ په لور چې په چين کې د مختلفو دولتونو د جوړيدو سبب شول. دويم د لويديځ په لور مهاجرت چې د خزر بحيرې د شمال او سويل په لور ترسره کيده.

که څه هم په منځنۍ آسيا باندې واکمني د پووندتوب اقتصاد او د پووندوو کلابندي د دوی د مهاجرت او تيري علت بلل شوی دی، خو د نومړو يرغلونو پر سياسي علت باندې هم نشي کيدای چې سترګې پټې شي. دغه سياسي علت بايد په منځنۍ آسيا کې د مغولانو د سوداګرۍ کاروان په لوټ او وژنه کې د علاءالدين محمد خوارزم شاه اشتباه وبولو چې د لويديځ په لور د مغولو قومونو د پاملرنې لامل وګرځيد او اسلامي هيوادونه او ولايتونه يې د منځنۍ آسيا د خلکو د آسونو تر پښو لاندې کړل.

د کرت کورنۍ هم چې د مغولانو په زمانه کې حکومت جوړ کړ، هرات يې د خپلې پلازمينې په توګه غوره کړ او په تيره بيا د هولاکو خان په زمانه کې د دوی او هولاکو خان ترمنځ نږدې همکاري ټينګه شوه.

د کرت د کورنۍ مشر ملک شمس الدين کرت نوميده. د ده نه وروسته زوی یې ملک رکن الدين حکومت ته ورسيد. (۷۰۵- ٦٦٧ ق) دا لړۍ په پای کې د امير تيمور ګورکاني په واسطه له منځه لاړه او د دوی وروستنی پاچا غياث الدين نوم درلود (۷۸۳- ۷۷۱ ق)، چې د اسارت نه وروسته، په ۷۸۷ کال کې د تيمور په واسطه ووژل شو. تيموريان هم د مغولانو له کورنۍ څخه شميرل کيده. مهم ټکي دا دي چې د تيمور زامنو، د خپل پلار او نيکونو په خلاف، نرمه او سوله غوښتونکې روحيه درلوده. دوی په افغانستان کې د پوهې او هنر په برخو کې باارزښته خدمتونه وکړل.

*د زياتو معلوماتو لپاره وګورئ:*

*۱- هرات، شهر آريا، لومړی ټوک، د دوکتور فاروق انصاري ليکنه.*

*۲- تاريخ فشردهٔ افغانستان، د دوکتور فاروق انصاري ليکنه.*

*۳- اصلي منبع: جهانګشاي جويني، د عطا ملک جويني ليکنه.*

**د (نهم) لوست د تدریس لارښود پلان**

**د تدریس وخت: دوه درسي ساعتونه**

| ۱- د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرح | |
|---|---|---|
| **د لوست موضوع** | شیبانیان او د ماوراءالنهر استراخانیان | |
| **تولیزه موخه** | له پورتنیو لړیو او د هغوی او افغانانو له اړیکو سره د زده کوونکو آشنایي. | |
| **۲- ځانګړې روزنیزې موخې (پوهنیزې، مهارتي، ذهنیتي)** | هیله ده د لوست په پای کې زده کوونکي لاندې موخو ته ورسیږي:<br>۱. د شیبانیانو او استراخانیانو له لړیو سره آشنایي<br>۲. د پورتنیو دوو حکومتونو له نژاد او د ټاټوبي له اصلي ځای سره آشنایي<br>۳. له افغانانو سره د دغو دوو حکومتونو د اړیکو د ټینګیدو له څرنګوالي سره آشنایي<br>٤. زموږ هیواد ته د دغو دوه لړیو د پام له لاملونو سره آشنایي<br>۵. د نوموړو لړیو سره د افغانانو د اړیکو له پایلو سره آشنایي<br>٦. په پورتنیو لړیو کې له فرهنګي او تمدني اوضاع سره آشنایي<br>۷. د تاریخي پیښو د څیړنې د مهارت ترلاسه کول.<br>۸. د افغانستان د تمدن او فرهنګ د تاریخ په اړه د علاقې رامنځ ته کول. | |
| **۳- د تدریس چلندونه** | ۱- د ښوونکي خبرې او وضاحت. ۲- د ښوونکي او زده کوونکو سوال او ځواب | |
| **۴- د تدریس توکي** | کتاب، تخته او تباشیر، انځور او نقشه | |
| **۵- د ارزونې چلندونه (شیوه)** | په تقریري توګه د لوست په پای کې او په تحریري ډول د تعلیمي دورې په پای کې | |
| **٦- د تدریس او زده کړې فعالیتونه** | لومړني فعالیتونه او د انګیزې رامنځ ته کول:<br>۱. د سلام اچول او د احوال پوښتنه<br>۲. حاضري<br>۳. د تدریس د توکو برابرول.<br>د انګیزې رامنځ ته کول:<br>۱- ورودي پوښتنه.<br>۲- د جغرافیایي نقشې ښودل.<br>۳- د انځور ښودل. | وخت په دقیقو<br>۲۰ دقیقې |

<table>
<tr><th>د مطالبو سرليکونه</th><th colspan="2">د مطالبو شرح</th><th>وخت</th></tr>
<tr><td colspan="2">۷- د ښوونکي فعاليتونه</td><td>د زده کوونکو فعاليتونه</td><td rowspan="2">۷۰ دقيقې</td></tr>
<tr><td colspan="2">- د تختې پر مخ د لوست سرليک ليکل.<br>- په تخته باندې د لوست د مهمو مطلبونو او نومونو ليکل.<br>- د ښوونکي ځواب د زده کوونکو پوښتنو ته<br>- جمع بندي او د لوست خلاصه کول.</td><td>- پام او د سرليک ياداشت کول.<br>- پام او په کتابچه کې ليکل.<br>- لــه ښــوونکي نــه د لوســت پــه اړه د زده کوونکــو پوښتنې.</td></tr>
<tr><td>۸- پوښتنو ته ځوابونه او يا په متن کې فعاليتونه</td><td colspan="3">۱. شيباني ازبکانو اصلاً په هغو جلګو کې چې اوس په قزاقستان کې موقعيت لري، ژوند کاوه او په لسمه پيړۍ کې د محمدخان شيباني تر رهبرى لاندې په ماوراءالنهر کې ځای پر ځای شول.<br>۲. محمدخان شيباني د جوجي له زامنو څخه و، جوجي د چنګيز خان زوی و.<br>۳. د زمينداور او ګرمسير دوې سيمې ازبکانو ته تسليم نه شوې.<br>٤. د بلخ په فرهنګي وضع کې د ندر محمدخان او سبحان قلی خان په وخت کې ښه والی راغلی.<br>۵. استراخانيانو معمولاً د تخار ولايت نه د هرات په لور لښکر راويسته.</td></tr>
</table>

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

د ماوراءالنهر سيمه د سيحون او جيحون ترمنځ موقعيت لري او د تاشکند، سمرقند، بخارا، خيوې او استراخان مهم ښارونه په هغه ځای کې پراته دي. د دې سيمې له ډېرو مهمو طايفو څخه ازبکان (اوزبکان) دي چې د جوجي زوی ازبک خان ته منسوب دي. د اوزبک کلمه معمولاً خان او د قبيلې مشر (امير) ته اطلاق کيږي.

د استراخانيانو او شيبانيانو دوه لړيو چې له مهمو ازبکي ځانګو څخه شميرل کيږي د ازبکانو قدرت يې په ماوراءالنهر کې ډير زيات کړ او د هغوی د قدرت تر ټينګيدو وروسته د افغانستان په شمال باندې د هغوی يرغلونه پيل شول.

د شيبانيانو عمده مرکزونه سمرقند، بخارا او د افغانستان شمالي ولاياتو ته يې د مال او غنيمت د لاس ته راوړلو له امله ډيره پاملرنه کوله او له همدې امله يې په پورتنيو سيمو کې په غلاوو باندې لاس پورې کړ.

استراخانيانو هم چې په لسمه پيړۍ کې يې ماوراءالنهر ونيو، د شيبانيانو په شان يې د افغانستان شمالي ولاياتو سره معامله وکړه، يعنې نوموړو ولايتونو ته د لاس اچونې تر څنګ يې له وژنې، چور او ويجاړونې څخه هم ډډه ونه کړه. استراخانيانو له ۱۰۰۷ تر ۱۱٦۷ کال پورې خپل حکومت ته دوام ورکړ او له هغوی څخه ۱۳ تنه د واکمنۍ مقام ته ورسيدل.

*د زياتو معلوماتو لپاره وګورئ:*

*۱- امپراتورۍ صحرا نوردان، رنه ګروسه.*

*۲- هرات شهر آريا، دوکتور فاروق انصاري.*

*۳- افغانستان در مسير تاريخ، غلام محمد غبار.*

**د (لسم) لوست د تدریس لارښود پلان**

**د تدریس وخت: دوه درسي ساعتونه**

| ۱- د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرح | |
|---|---|---|
| **د لوست موضوع** | د هند بابریان | |
| **تولیزه موخه** | د هند له بابریانو او د هغوی او افغانانو له اړیکو سره د زده کوونکو آشنایي | |
| **۲- ځانګړې روزنیزې موخې (پوهنیزې، مهارتي، ذهنیتي)** | هیله ده د لوست په پای کې زده کوونکي لاندې موخو ته ورسیږي:<br>۱. د بابریانو د نژاد او اصلي ټاټوبي سره آشنایي<br>۲. د بابر او د هغه د زامنو د واک ته رسیدو له څرنګوالي سره آشنایي<br>۳. زموږ هیواد او هندوستان ته د بابر د پاملرنې له لامل سره آشنایي<br>٤. د هند د بابریانو او افغانانو له اړیکو سره آشنایي<br>٥. د بابریانو په دوره کې د افغانستان له فرهنګي او تمدني وضعې سره آشنایي<br>٦. د تاریخي پیښو د تحلیل د مهارت ترلاسه کول.<br>۷. د هغو شخصیتونو په اړه چې د خپلواکۍ لپاره یې هڅه کړې ده، د علاقې رامنځ ته کول. | |
| **۳- د تدریس چلندونه** | ۱- د ښوونکي خبرې او وضاحت. ۲- د ښوونکي او زده کوونکو سوال او ځواب | |
| **۴- د تدریس توکي** | کتاب، تخته او تباشیر، انځور او نقشه | |
| **۵- د ارزونې چلندونه (شیوه)** | په تقریري توګه د لوست په پای کې او د راتلونکي لوست په پیل کې، په تحریري ډول د تعلیمي دورې په پای کې | |
| **٦- د تدریس او زده کړې فعالیتونه** | لومړني فعالیتونه او د انګیزې رامنځ ته کول:<br>۱- د سلام اچول او د احوال پوښتنه<br>۲- د انځور ښودل له کتاب څخه<br>۳- ورودي پوښتنه<br>٤- د جغرافیایي نقشې ښودل | وخت په دقیقو<br>۲۰ دقیقې |

<table>
<tr><th>د مطالبو سرليکونه</th><th colspan="2">د مطالبو شرح</th><th>وخت</th></tr>
<tr><td colspan="2">۷- د ښوونکي فعاليتونه</td><td>د زده کوونکو فعاليتونه</td><td rowspan="2">۷۰ دقيقې</td></tr>
<tr><td colspan="2">- د لوست په اړه د ښوونکي توضيح<br>- زده کوونکو ته د ښوونکي ځواب<br>- جمع بندي او د لوست خلاصه کول</td><td>- لوست ته د زده کوونکو غوږ نيول.<br>- له ښوونکي څخه د زده کوونکو پوښتنې.<br>- د زده کوونکو ياداښت کول.</td></tr>
<tr><td>۸- پوښتنو ته ځوابونه او يا په متن کې فعاليتونه</td><td colspan="3">۱. بابر د ازبکستان په انديجان کې نړۍ ته راغی او په کابل کې خاورو ته وسپارل شو.<br>۲. بابر شاه په کابل باندې مين و.<br>۳. خوشحال خان خټک له اورنګ زيب سره نښته درلوده.<br>٤. بايزيد انصاري د روښانيه (روښانيانو) د غورځنګ رهبر و.<br>۵. همايون د شيرشاه سوري له لوري ماته وخوړه.</td></tr>
<tr><td>۹- پوښتنو ته ځواب او وروستي فعاليتونه</td><td colspan="3">په افغانستان کې د بابريانو آثار، د درسي متن په دننه کې راغلي دي.</td></tr>
</table>

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

ظهيرالدين محمد بابر د تيمور له اولادې څخه ګڼل کيږي. هغه د هند د مغولانو يا بابريانو يا ګورګانيانو د لړۍ بنسټ ايښودونکی دی چې په هند کې د واکمنو سوري افغانانو له کورنيو اختلافونو څخه يې ګټه واخيسته او په هغوی بريالی شو. په پيل کې يې په لاهور او وروسته يې په اګره کې د هند د مغولانو د لړۍ بنسټ کيښود.

له بابر څخه وروسته د دې لړۍ نامتو پادشاه جلال الدين محمد اکبر نوم درلود. هغه د وخت په تيريدو سره کشمير، سند، پنجاب، قندهار او احمدنګر ونيو. په (۱۵۹۲م) کال کې يې د هند لرغونې امپراتوری يوځل بيا رامنځته کړه او د منظم اداري سازمان بنسټ يې کيښود او د خپل عصر تر ټولو لوی پادشاه وګرځيد. هغه په (۱٦۰۵م) کال کې وفات شو او زوی يې سليم د جهانګير په تخت کيناست. د هغه په دوره کې کورني پاڅونونه او شورشونه ډېر شول او په واقعيت کې د هند د بابريانو کمزورتيا پيل شوه.

د هند د بابريانو حکومت د انګريزانو په واسطه پای ته ورسيده. په (۱۸۳۷م) کال کې د بابريانو وروستنی واکمن د بهادرشاه په نوم واک ته ورسيد. هغه د ختيځ هند د انګليسي کمپنۍ مزدور شو. په (۱۸۳۹م) کال کې بريتانيا په رسمي ډول هند د ملاتړ لاندې هيواد په توګه رامنځته کړ او له هغه څخه يې د افغانستان په وړاندې د جګړې لپاره ګټه واخيسته.

*د لا زياتو معلوماتو لپاره وګورئ:*

*۱- نګاهی به تاريخ جهان (۳ ج)، جواهر لعل نهرو.*
*۲- تاريخ تفکر اسلامی در هند، عزيز احمد.*

**د (یولسم) لوست د تدریس لارښود پلان**

**د تدریس وخت: دوه درسي ساعتونه**

| ۱- د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرح | |
|---|---|---|
| **د لوست موضوع** | د ایران صفویان | |
| **ټولیزه موخه** | د ایران له صفوي لړۍ سره د زده کوونکو آشنایي. | |
| **۲- ځانګړې روزنیزې موخې (پوهنیزې، مهارتي، ذهنیتي)** | هیله ده د لوست په پای کې زده کوونکي لاندې موخو ته ورسیږي:<br>۱. د صفویانو د اصل او نسب سره آشنایي<br>۲. په ایران کې د صفویانو د واک ته رسیدو له څرنګوالي سره آشنایي<br>۳. د صفوي حکومت د نفوذ او پراختیا له څرنګوالي سره آشنایي<br>٤. له افغانستان سره د هغوی د اړیکو له څرنګوالي سره آشنایي<br>۵. د تاریخي پیښو د تحلیل د مهارت ترلاسه کول.<br>٦. د هغو شخصیتونو په وړاندې چې د افغانستان د خپلواکۍ لپاره یې ګام پورته کړی، د علاقې رامنځ ته کول. | |
| **۳- د تدریس چلندونه** | ۱- د ښوونکي خبرې او وضاحت ۲- د ښوونکي او زده کوونکو سوال او ځواب | |
| **۴- د تدریس توکي** | درسي کتاب، تخته او تباشیر، انځور او نقشه | |
| **۵- د ارزونې چلندونه (شیوه)** | ۱- په تقریري توګه د لوست په پای کې ۲- په تحریري توګه هر وخت یې چې ښوونکی ضروري وګڼي | |
| **٦- د تدریس او زده کړې فعالیتونه** | لومړني فعالیتونه او د انګیزې رامنځ ته کول:<br>۱- د سلام اچول او د احوال پوښتنه<br>۲- د انځور ښودل.<br>۳- د نقشې ښودل.<br>٤- ورودي پوښتنه | وخت په دقیقو<br>۲۰ دقیقې |

<table dir="rtl">
<tr><th>د مطالبو سرليکونه</th><th colspan="2">د مطالبو شرح</th><th>وخت</th></tr>
<tr><td rowspan="2"></td><td>۷- د ښوونکي فعالیتونه</td><td>د زده کوونکو فعالیتونه</td><td rowspan="2">۷۰<br>دقيقې</td></tr>
<tr><td>- د لوست په اړه د ښوونکي وضاحت<br>- زده کوونکو ته د ښوونکي ځواب<br>- جمع بندي او د لوست خلاصه</td><td>- د ښوونکي لوست ته د زده کوونکو پام<br>- له ښوونکي څخه د زده کوونکو پوښتنه<br>- د زده کوونکو یاداشت کول.</td></tr>
<tr><td>۸- پوښتنو ته ځوابونه او یا په متن کې فعالیتونه</td><td colspan="3">۱. ازبکي شیبانیان او د هند بابریان د صفویانو له دولت سره هم مهاله په واک کې وو.<br>۲. ازبک محمد شیباني خان د شاه اسماعیل صفوي له خوا ووژل شو.<br>۳. شاه عباس د صفویانو تر ټولو پیاوړی پادشاه و.<br>٤. د قندهار برخلیک د هند او ایران تر جنجال او اختلاف لاندې و.<br>۵. د شاه تهماسب صفوي د پادشاهۍ په موده کې همایون ایران ته پناه یوړه.</td></tr>
<tr><td>۹- پوښتنو ته ځواب او وروستي فعالیتونه</td><td colspan="3">د قندهار جغرافیایي ارزښت د هند او ایران په بهرنـي سیاسـت اغیـزه درلـوده، ځکه چې دا ولایت د پورتنیو دواړو هیوادونو په پولو کې پروت و او دواړو غوښتل چې هغه تر خپلې ولکې لاندې راولي.</td></tr>
<tr><td colspan="4">د ښوونکي لپاره اضافي معلومات<br>د صفویانو په اړه مهم ټکي، له اروپایانو سره د هغوی د اړیکو ټینګول وو، چې د ایـران د بهرنیـو اړیکـو پـه تـاریخ کې ډیر ارزښت لري. ځکه دغه اړیکې د عثمانیانو پـه وړانـدې چې د اروپایـانو سـره یـې نـښته درلودلـه د ایـران د پیاوړتیا لامل شوې او له بلې خوا ایران له نویو عصري وسلو څخه برخمن شو. په دې برخه کې پـه ځـانګړې توګـه د شرلي د وروڼو (رابرت او آنتوني) سفر د شاه عباس دربار ته ډیر مهم و. دغو وروڼـو هـم د ایـران پـه دننـه کـې د ځواکونو په روزلو او سمبالولو کې مهم رول ولوباوه او هم یې له ایـران سـره مرسـته وکـړه چې خپلـې اړیکـې لـه اروپایي هیوادونو سره ټینګې کړي.<br>د لا زیاتو معلوماتو لپاره مراجعه وکړئ:<br>۱- راجر سیوري، ایران در عصر صفوی<br>۲- د قندهار تاریخي جغرافیا، دوکتور فاروق انصاري.<br>۳- افغانستان د تاریخ په اوږدو کې، غلام محمد غبار.</td></tr>
</table>

**د (دولسم) لوست د تدريس لارښود پلان**

**د تدريس وخت: دوه درسي ساعتونه**

<table>
<tr><th>۱- د مطالبو سرليکونه</th><th colspan="2">د مطالبو شرح</th></tr>
<tr><td>د لوست موضوع</td><td colspan="2">د قندهار پاڅون</td></tr>
<tr><td>ټولیزه موخه</td><td colspan="2">د حاجي میرویس نیکه په رهبرۍ د قندهار د خلکو له پاڅون سره د زده کوونکو آشنا کول</td></tr>
<tr><td>۲- ځانګړې روزنيزې موخې (پوهنيزې، مهارتي، ذهنيتي)</td><td colspan="2">هیله ده د لوست په پای کې زده کوونکي لاندې موخو ته ورسیږي:<br>۱. د قندهار د پاڅون د رامنځ ته کیدو له زمینو سره آشنايي<br>۲. د پاڅون په وخت کې د قندهار له سیاسي او ټولنيز وضعیت سره آشنايي<br>۳. د پاڅون په مهال د افغانستان له سیاسي وضعیت سره آشنايي<br>٤. د خپلواکۍ د لاس ته راوړلو په موخه د حاجي میرویس له هڅو سره آشنايي<br>۵. د تاریخي پیښو او وقایعو د تحلیل مهارت ترلاسه کول.<br>٦. د آزادۍ غوښتونکو خلکو د خوځښت په وړاندې د علاقې رامنځ ته کول.<br>۷. د هیواد د تاریخي شخصیتونو په وړاندې د علاقې رامنځ ته کول.</td></tr>
<tr><td>۳- د تدريس چلندونه</td><td colspan="2">۱- د ښوونکي خبرې او وضاحت ۲- د ښوونکي او زده کوونکو سوال او ځواب</td></tr>
<tr><td>۴- د تدريس توکي</td><td colspan="2">درسي کتاب، تخته او تباشير، انځور او نقشه</td></tr>
<tr><td>۵- د ارزونې چلندونه (شيوه)</td><td colspan="2">په تقریري توګه د لوست په پای کې، په تحریري ډول د تعلیمي دورې په پای کې</td></tr>
<tr><td rowspan="2">٦- د تدريس او زده کړې فعاليتونه</td><td rowspan="2">لومړني فعالیتونه او د انګیزې رامنځ ته کول:<br>۱- د سلام اچول او د احوال پوښتنه<br>۲- د انځور ښودل<br>۳ - ورودي پوښتنه</td><td>وخت په دقيقو</td></tr>
<tr><td>۲۰ دقيقې</td></tr>
</table>

| د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرح | | وخت |
|---|---|---|---|
| **۷- د ښوونکي فعالیتونه** | - د لوست په اړه د ښوونکي وضاحت<br>- زده کوونکو ته د ښوونکي ځواب<br>- جمع بندي او د لوست خلاصه | **د زده کوونکو فعالیتونه**<br>- د ښوونکي لوست ته د زده کوونکو پام<br>- له ښوونکي نه د زده کوونکو پوښتنه<br>- د زده کوونکو یاداشت کول. | ۷۰ دقیقې |
| **۸- پوښتنو ته ځوابونه او یا په متن کې فعالیتونه** | ۱. ګرګین خان په اصل کې د ګرجستان له خلکو څخه و او د شهنواز خان په نامه يې د صفوي دولت له خوا په قندهار کې واکمنی درلوده.<br>۲. حاجي میرویس خان د اتو کالو لپاره (۲۸- ۱۱۲۰ ق) د قندهار اداره په لاس کې درلوده.<br>۳. د افغانستان ډیره برخه د هند، ایران او ازبکانو ترمنځ ویشل شوې وه.<br>۴. د هوتکیانو د خپلواک حکومت بنسټ د حاجي میرویس په واسطه کېښودل شو. | | |
| **۹- پوښتنو ته ځواب او وروستي فعالیتونه** | د قندهار د پاڅون لاملونه:<br>۱- د ګرګین خان ظلم او تیری<br>۲- د خپلواکۍ او آزادۍ سره د خلکو مینه<br>۳- د هند د ګورکاني او د ایران د صفوي دولت د کمزورتیا نه وروسته د مساعدو شرایطو منځ ته راتلل. | | |

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

د هوتکیانو خوځښت باید د افغانستان په تاریخ کې د نوې دورې پیل وګڼو. ځکه دغه خوځښت په داسې شرایطو کې منځ ته راغی چې زموږ هیواد عملاً د ګاونډیانو په منځ کې ویشل شوی و. یعنې په دې مهال چې کابل د بابریانو په ولکه کې و، زموږ د هیواد بله خوا، له هرات څخه تر قندهار پورې د صفویانو په لاس کې وه.
د قندهار خوځښت کولای شو چې د افغانانو د مخکنیو غورځنګونو لکه روښانیانو او ختکو ادامه وګڼو چې دا ځل د آزادۍ غوښتنې له روحیې او د ګرګین په وړاندې د کرکې له روحیې سره رامنځته شو ځکه د ګرګین خان ظلمونو او تیریو د خلکو د صبر کاسه ډکه کړې وه او له دې امله یوه سپرغی په کار وه چې دغه اور بل کړي او ومو لیدل چې دغه کار د حاجي میرویس خان هوتک په واسطه ترسره شو.
حاجي میرویس خان د شاه عالم هوتکي زوی له هند او ایران سره د سوداګرۍ له امله د سیمې له عمومي اوضاع څخه خبر و او له بلې خوا د غلجي افغانانو د مشر په توګه د قندهار د حرکت د مشرۍ ترلاسه کولو لپاره له لازمي تجربې برخمن شوی و، نو په دې بریالی شو چې د قندهار پاڅون پایلې ته ورسوي. میرویس خان د شاه عالم خان زوی و او په (۹) پشت کې هوتک ته او په (۱۱) پشت کې غلجي ته رسیږي.
*د لا زیاتو معلوماتو لپاره وګورئ:*


*۱- فشردهٔ تاریخ افغانستان، دوکتور فاروق انصاري.*
*۲- هوتکیان، عبدالرؤف بینوا.* *۳- افغانستان در مسیر تاریخ، غلام محمد غبار.*

**د (دیارلسم) لوست د تدریس لارښود پلان**

**د تدریس وخت: دوه درسي ساعتونه**

<table>
<tr><th>۱- د مطالبو سرلیکونه</th><th colspan="2">د مطالبو شرح</th></tr>
<tr><td>د لوست موضوع</td><td colspan="2">د میرویس خان ځای ناستي</td></tr>
<tr><td>ټولیزه موخه</td><td colspan="2">د حاجي میرویس نیکه له ځای ناستو او د هغوی له اقداماتو سره د زده کوونکو آشنا کول.</td></tr>
<tr><td>۲- ځانګړې روزنیزې موخې (پوهنیزې، مهارتي، ذهنيتي)</td><td colspan="2">هیله ده د لوست په پای کې زده کوونکي لاندې موخو ته ورسیږي:<br>۱. د میرویس خان د ځای ناستو له سیاسي او پوځي اقداماتو سره آشنایي<br>۲. ایران ته د محمود هوتکی د پاملرنې له لاملونو سره آشنایي<br>۳. په ایران کې د افغاني حکومت له جوړیدو سره آشنایي<br>٤. په ایران کې د شاه اشرف هوتکی له اقداماتو سره آشنایي<br>٥. له ایران څخه د افغانانو د شاتګ له لاملونو سره آشنایي<br>٦. د تاریخي پیښو د تحلیل د مهارت ترلاسه کول.<br>۷. د خپلواکۍ غوښتنې او تاریخي شخصیتونو په وړاندې د علاقې رامنځ ته کول.</td></tr>
<tr><td>۳- د تدریس چلندونه</td><td colspan="2">۱- د ښوونکي خبرې او وضاحت ۲- د ښوونکي او زده کوونکو سوال او ځواب</td></tr>
<tr><td>۴- د تدریس توکي</td><td colspan="2">درسي کتاب، تخته او تباشیر، انځور او نقشه</td></tr>
<tr><td>۵- د ارزونې چلندونه (شیوه)</td><td colspan="2">۱- په تقریري توګه د راتلونکي لوست په پیل کې. ۲- په تحریري ډول د تعلیمي دورې په پای کې</td></tr>
<tr><td rowspan="2">٦- د تدریس او زده کړې فعالیتونه</td><td rowspan="2">لومړني فعالیتونه او د انګیزې رامنځ ته کول:<br>۱- د سلام اچول او د احوال پوښتنه<br>۲- لوست ورودي پوښتنه<br>۳- د مربوطه انځور ښودل.<br>٤- د جغرافیایي نقشې ښودل.</td><td>وخت په دقیقو</td></tr>
<tr><td>۲۰ دقیقې</td></tr>
</table>

| د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرح | | وخت |
|---|---|---|---|
| ۷- د ښوونکي فعالیتونه | | د زده کوونکو فعالیتونه | ۷۰ دقیقې |
| - په تخته باندې د لوست د سرلیک لیکل.<br>- په تخته باندې د لوست د مهمو نومونو او مطالبو لیکل.<br>- د زده کوونکو پوښتنو ته د ښوونکي ځواب.<br>- جمع بندي او د لوست خلاصه کول. | | - د زده کوونکو پام او یاداشت نیول.<br>- پام او په کتابچه کې یاداشت کول.<br>- د لوست په اړه له ښوونکي څخه د زده کوونکو پوښتنې. | |
| ۸- پوښتنو ته ځوابونه او یا په متن کې فعالیتونه | ۱. میر عبدالعزیز له دې امله چې د صفویانو په وړاندې یې د سوله ییزې غوښتنې لاره غوره کړې وه، له کاره ګوښه شو.<br>۲. اصفهان د هوتکي شاه محمود په واسطه ونیول شو.<br>۳. شاه اشرف په ایران باندې د عثمانیانو او روسیې یرغلونه د ماتې سره مخامخ کړل.<br>٤. د افغانانو ترمنځ د کورنیو اختلافاتو او د نادرشاه افشار د راڅرګندیدو له امله له ایران څخه په شا شول.<br>٥. هوتکي میر عبدالعزیز د سولې لاره غوره کړه. | | |
| ۹- پوښتنو ته ځواب او وروستي فعالیتونه | له قندهار څخه د سیستان له لارې تر کرمان او یزد او له هغه ځایه اصفهان ته | | |

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

مهم ټکي دا دي چې هوتکي شاه محمود د خپلې نقشې د عملي کولو لپاره د افغانستان د نورو قبایلو په تیره بیا د هزاره وو ملاتړ ترلاسه کړ. په دې حال کې هغه د هرات له ابدالي دولت څخه چې هغه سره جنګیدلی و، ویره نه درلوده، ځکه چې هغوی په سختو کورنیو جنجالونو کې راښکیل شوي وو. د سیمې شرایط هم د هغه په ګټه وو. د هند د مغولانو یا ګورګاني امپراتوري هم په چټکتیا سره د نسکوریدو په لور روانه وه. په ایران کې هم د هندوستان په څیر د حکومت قدرت په څرګند ډول د کمزورتیا په لور روان و او هلته هم ډیر وخت تیر شوی و چې مذهبي آزادي له منځه تللې وه. له همدې امله د کردانو له خوا پاخون رامنځته شو، هغوی همدان ونیو او دغه ټول ځایونه یې تر اصفهان پورې چور کړل. له دې سربیره لوی پطر په روسیه کې، ایران په کلکه تر نظر لاندې درلود.

بلوڅان هم بيکاره کښينه ناستل او د بم او کرمان سيمې يې تر بريدونو لاندې ونيولې. په داسې حالاتو کې څرګنده وه چې صفويان له کمزورتيا او سقوط سره مخامخ وو. دغه وضعيت هوتکي شاه محمود ته جرئت او فرصت ورکړ چې صفوي دولت ته وروستنی ضربه ورکړي.

يوه بله مهمه موضوع د عثمانيانو او روسيې په وړاندې له ايران څخه د شاه اشرف هوتکي دفاع وه چې د ايران خاورې ته يې سترګې نيولې وې او غوښتل يې چې د ايران ځينې برخې ترلاسه کړي، خو شاه اشرف د هغوی نقشې شنډې کړې.

*وګورئ:*

*۱- انقراض سلسله صفويه، لارنس لاکهارت.*

*۲- فشرده تاريخ افغانستان، دوکتور فاروق انصاري.*

*۳- هوتکی ها، عبدالرؤف بينوا.*

**د (ځوارلسم) لوست د تدریس لارښود پلان**

**د تدریس وخت: دوه درسي ساعتونه**

| ۱- د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرح | |
|---|---|---|
| **د لوست موضوع** | ایران په منځنیو او نویو پېړیو کې | |
| **ټولیزه موخه** | په منځنیو او نویو پېړیو کې د ایران له مهمو بدلونونو سره د زده کوونکو آشنا کول. | |
| **۲- ځانګړې روزنیزې موخې (پوهنیزې، مهارتي، ذهنیتي)** | هیله ده د لوست په پای کې زده کوونکي لاندې موخو ته ورسیږي:<br>۱. په منځنیو او نویو پېړیو کې د ایران د تاریخي بدلون له کلي جریان سره د زده کوونکو آشنایي<br>۲. په ایران کې د پاچاهۍ له مهمو لړیو سره د زده کوونکو آشنایي<br>۳. د پورتنیو لړیو د منځته راتلو او له منځه تلو د لاملونو سره د زده کوونکو آشنایي<br>٤. د افغانستان له تاریخ سره د ایران د تاریخي ورته والي په اړه د زده کوونکو آشنایي<br>۵. په نویو پېړیو کې ایران ته د اروپائیانو د پام اړولو له لاملونو سره د زده کوونکو آشنایي<br>٦. د تاریخي پېښو د تحلیلولو او پیژندلو د مهارت ترلاسه کول.<br>۷. د زده کوونکو ترمنځ د حقایقو او حقیقت غوښتنې په اړه د علاقې رامنځته کول.<br>۸. د افغانستان او ایران د ګډ کلتور او تمدن په اړه د علاقې رامنځ ته کول. | |
| **۳- د تدریس چلندونه** | ۱- د ښوونکي خبرې او وضاحت ۲- د ښوونکي او زده کوونکو سوال او ځواب | |
| **۴- د تدریس اړین توکي** | درسي کتاب، تخته، تباشیر، انځور او نقشه | |
| **۵- د ارزونې چلندونه (شیوه)** | په تقریري توګه د راتلونکي لوست په پیل کې، په تحریري ډول چې کله یې ښوونکی لازم وګڼي | |
| **٦- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه** | لومړني فعالیتونه او د انګیزې رامنځته کول:<br>۱- د سلام اچول او احوال پوښتنه<br>۲- د حاضرۍ اخیستل.<br>۳- په روحي او رواني توګه د زده کوونکو چمتو کول.<br>د انګیزې رامنځ ته کول:<br>۱- د انځور ښودل.<br>۲- د ورودي پوښتنې طرح کول.<br>۳- د خاطرې یا داستان بیان. | وخت په دقیقو<br><br>۲۰ دقیقې |

| د مطالبو سرليکونه | د مطالبو شرح | | وخت |
|---|---|---|---|
| ۷- د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه | | ۷۰ دقيقې |
| - د تختې پر مخ د لوست د سرليک ليکل.<br>- د لوست د مهمو مطالبو او نومونو ليکل.<br>- د زده کوونکو پوښتنو ته د ښوونکي ځواب.<br>- د لوست جمع بندي او خلاصه کول. | - د زده کوونکو پام او د سرليک ياداشتول.<br>- پام او په کتابچه کې ياداشتول.<br>- د لوست په اړه له ښوونکي څخه د زده کوونکو پوښتنې. | | |
| ۸- پوښتنو ته ځوابونه او يا په متن کې فعاليتونه | ۱. علويان له هاشمي سيدانو سره تړلي چې د پيغمبر (ص) له کورنۍ څخه دي او د ايران په طبرستان کې يې حکومت جوړ کړ.<br>۲. د کريم خان زند په وخت کې انګليسانو د فارس په خليج کې د سوداګرۍ اجازه ترلاسه کړه.<br>۳. صفويان، افشاريان، زنديه، قاجاريان<br>٤. له نادرشاه افشار وروسته په ايران کې کريم خان زند ډير ځواک ترلاسه کړ. | | |
| ۹- پوښتنو ته ځواب او وروستي فعاليتونه | سوچه ايراني لړۍ عبارت دي له: د طبرستان علويان، زياريان، آل بويه هغو لړيو چې په ايران او افغانستان کې يې حکومت وکړ: سامانيان، غزنويان، سلجوقيان او خوارزم شاهيان او ... | | |

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

د ايران تاريخي مهال تر ډيره د افغانستان له تاريخ سره ورته والی لري، خو د دې هيواد په تاريخ کې وقفې شتون لري چې د دغه هيواد تاريخ له نورو څخه بيلوي. له دغو وقفو (مقاطعو) څخه يوه هم د صفويانو دوره ده چې له اسلام وروسته يې ايران ته نوې بڼه ورکړه.
په حقيقت کې صفويان له اسلام وروسته په دې بريالي شول چې ايران ته نوی هويت ورکړي، ځکه پوهيږو چې د مغولانو په واسطه د خلافت له سقوط وروسته او په صليبي جګړو کې د مصر د فاطمي خلفاوو له ماتې وروسته په رسمي توګه د خليفه په نامه شخص شتون نه درلود. له څو کالو وروسته په اسلامي حکومتونو کې د خليفه مقام په يو تشريفاتي شخصيت اوښتی و خو هغه تراوسه د اسلامي نړۍ ترمنځ د يووالي عامل و. له همدې امله و چې د فاطمي خلفاوو د شتون د اعلام په مهال بيا هم اسلامي هيوادونه له يو بل څخه بيل نه شول، سره له دې چې دوه ډلې شول، خو هر يو د دغو دوو ډلو له يوې لوا لاندې و.
له دغو خلفاوو وروسته صفويانو يو بشپړ خپلواک هويت ترلاسه کړ او حتی خپل مذهب يې هم د اسلامي نړۍ له عموميت څخه بيل کړ.

د صفویانو د ارزښت یوه بله بیلګه د نړۍ له مهمو تغیراتو سره د هغوی د دورې هم مهالتوب دی. د صفوي لړۍ رامنځته کیدل د اروپا د رنسانس له پای او صنعتي انقلاب او نوي پیر ته د اروپا له داخلیدو او همدارنګه د عثماني په نامه د نوي قدرت له راپیدا کیدو سره چې ځان یې د اسلامي خلافت وارث ګاڼه، مصادف و.

*لاندې سرچینې وګورئ:*


١- *صفویان، راجر سیوري.*

٢- *جغرافیای تاریخي و اوضاع سیاسي و اجتماعي قندهار، دوکتور فاروق انصاری.*

٣- *اصلي سرچینه: تاریخ سلطانی، سید حسن استرآبادی.*

**د (پنځلسم) لوست د تدریس لارښود پلان**

**د تدریس وخت: دوه درسي ساعتونه**

<table>
<tr><th>۱- د مطالبو سرلیکونه</th><th colspan="2">د مطالبو شرح</th></tr>
<tr><td>د لوست موضوع</td><td colspan="2">هند په منځنیو او نویو پیړیو کې</td></tr>
<tr><td>ټولیزه موخه</td><td colspan="2">په منځنیو او نویو پیړیو کې د هند له مهمو بدلونونو سره د زده کوونکو آشنا کول.</td></tr>
<tr><td>۲- ځانګړې روزنیزې موخې (پوهنیزې، مهارتي، ذهنیتي)</td><td colspan="2">هیله ده د لوست په پای کې زده کوونکي لاندې موخو ته ورسیږي:<br>۱. په منځنیو او نویو پیړیو کې د هند د تاریخي بدلون له کلي سیر سره آشنایي<br>۲. د هندوستان د پاچاهۍ له مهمو لړیو سره آشنایي<br>۳. د هندي لړیو د عروج او سقوط له لاملونو سره آشنایي<br>٤. د هند له افغاني پاچاهانو (لودیانو او سوریانو) سره آشنایي<br>۵. په هند کې د اسلام په پراختیا کې د افغانستان له رول سره آشنایي<br>٦. د تاریخي پیښو د تحلیل د مهارت ترلاسه کول.<br>۷. د اسلامي کلتور او تمدن په اړه د علاقې رامنځته کول.</td></tr>
<tr><td>۳- د تدریس چلندونه</td><td colspan="2">۱- د ښوونکي خبرې او وضاحت ۲- د ښوونکي او زده کوونکو سوال او ځواب</td></tr>
<tr><td>۴- د تدریس اړین توکي</td><td colspan="2">درسي کتاب، تخته، تباشیر، انځور او نقشه</td></tr>
<tr><td>۵- د ارزونې چلندونه (شیوه)</td><td colspan="2">۱- په تقریري ډول د راتلونکي لوست په پیل کې ۲- په تحریري توګه کله یې چې ښوونکی لازم وګڼي.</td></tr>
<tr><td rowspan="2">٦- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه</td><td rowspan="2">لومړني فعالیتونه او د انګیزې رامنځ ته کول:<br>۱- د سلام اچول او د احوال پوښتنه<br>۲- خاطره یا داستان بیان<br>۳- د انځور ښودل.<br>٤- د نقشې ښودل.</td><td>وخت په دقیقو</td></tr>
<tr><td>۲۰ دقیقې</td></tr>
</table>



| د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرح | | وخت |
|---|---|---|---|
| ۷- د ښوونکي فعالیتونه | | د زده کوونکو فعالیتونه | ۷۰ |
| | - د لوست په اړه د ښوونکي وضاحت<br>- زده کوونکو ته د ښوونکي ځواب<br>- جمع بندي او د لوست خلاصه | - لوست ته د زده کوونکو غوږ نیول.<br>- د زده کوونکو پوښتنې<br>- د زده کوونکو یاداشت | دقیقې |
| ۸- پوښتنو ته ځوابونه او یا په متن کې فعالیتونه | ۱. د هند سویلي حکومتونو، له عربو او د سویلي آسیا او منځني ختیځ د سیمو له اوسیدونکو سره سوداګریزې اړیکې درلودې.<br>۲. مسلمانانو په لومړي ځل په (۷۱۱ز) کال کې له هند سره اړیکه ونیوله.<br>۳. غوري سلطان محمد ډهلی ونیو او قطب الدین ایبک ته یې وسپاره.<br>٤. سلطان بهلول لودي او سوري شیرشاه. | | |

## د ښوونکي لپاره اضافي معلومات

د اسلام لومړنۍ اړیکه له سویلي آسیا سره په (۷۱۱ز) کال کې وه چې مسلمانان د سند سیند لمنو ته چې اوس مهال په پاکستان پورې اړوند دي مخ ته لاړل. غزنوي سلطان محمود په لسمه میلادي پیړۍ کې پنجاب ونیو او څو ځله یې د هند په شمال یرغلونه وکړل. په دې دوره کې تر ټولو مهمه پیښه هند ته د ابوریحان بیروني سفر و چې حاصل د هغه باارزښته اثر (ماللهند) دی.

تر دیارلسمې زیږدیزې پیړۍ پورې په هند ډېر زیات بریدونه او یرغلونه ترسره کېدل، خو چندان پایښت یې نه درلود، تر دې چې په دې مهال کې مسلمانانو د ډهلي ښار ونیو او د مسلمانانو لومړنۍ حکومت یې د مسلمانو غلامانو او یا د ډهلي د واکمنانو په نامه جوړ کړ او اسلام رسماً په هند واکمن شو.

د ۱٦ پیړۍ په پیل کې، بابرشاه افغاني ابراهیم لودي ته له ماتې ورکولو سره، ډهلي ونیو او د هند د ګورکانیانو لړۍ یې رامنځ ته کړه چې د انګریزانو تر واکمنۍ پورې یې دوام درلود.

اروپائیانو په هند کې خپلې مادي ګټې هغه مهال ترلاسه کړې چې په (۱٤۹۸ز) کال کې پرتګالیانو هند ته لاره پیدا کړه او د ګوا په سیمه کې ځای پر ځای شول. د ۱٦ پیړۍ له پیل څخه، په هند کې د غربیانو په واسطه لویو سوداګریزو کمپنیو لکه د ختیځ هند کمپنۍ، د هند طبیعي او مادي شتمنۍ چور کولې تر دې چې د ۱۸ پیړۍ په پای کې بریتانویانو د فرانسې ځواکونو ته او د ګورکانیانو وروستنی پاچا (بهادرشاه ظفر) ته ماته ورکړه او د هند اقتصادي او اداري چارې یې په لاس کې ونیولې.

د لا زیاتو معلوماتو لپاره وګورئ:


۱. دولافوز، تاریخ هند، د فخر داعي ګیلاني ژباړه.
۲. تاریخ تفکر اسلامي در هند، عزیزاحمد.

**د (شپاړسم) لوست د تدریس لارښود پلان**

**د تدریس وخت: دوه درسي ساعتونه**

<table>
<tr><th>۱- د مطالبو سرلیکونه</th><th colspan="2">د مطالبو شرح</th></tr>
<tr><td>د لوست موضوع</td><td colspan="2">روسیه په منځنیو او نویو پیړیو کې</td></tr>
<tr><td>ټولیزه موخه</td><td colspan="2">په منځنیو او نویو پیړیو کې د روسیې له مهمو تاریخي پېښو سره د زده کوونکو آشنا کول.</td></tr>
<tr><td>۲- ځانګړې روزنیزې موخې (پوهنیزې، مهارتي، ذهنیتي)</td><td colspan="2">هیله ده د لوست په پای کې زده کوونکي لاندې موخو ته ورسیږي:<br>۱. په منځنیو او نویو پیړیو کې د روسیې د تاریخي بدلون له کلي سیر سره آشنایي<br>۲. د پورتنیو پیړیو په اوږدو کې د روسیې له مهمو پاچاهانو سره آشنایي<br>۳. د روسیې د لویو پاچاهانو د منځته راتګ او له منځه تګ له لاملونو سره آشنایي<br>٤. د مغولانو یرغلونه او له روسیې څخه د هغوی د ایستلو له لاملونو سره آشنایي<br>۵. د تاریخي پېښو د تحلیل او پېژندلو د مهارت ترلاسه کول.<br>٦. د انساني ارزښتونو د علاقې رامنځ ته کول او له یرغل او ظلم سره.</td></tr>
<tr><td>۳- د تدریس چلندونه</td><td colspan="2">۱- د ښوونکي وینا او وضاحت ۲- د ښوونکي او زده کوونکو پوښتنې او ځوابونه</td></tr>
<tr><td>۴- د تدریس توکي</td><td colspan="2">درسي کتاب، تخته، تباشیر یا مارکر، انځور او نقشه</td></tr>
<tr><td>۵- د ارزونې چلندونه (شیوه)</td><td colspan="2">۱- په تقریري توګه د لوست په پای کې. ۲- په تحریري ډول د تعلیمي دورې په نیمایي او پای کې</td></tr>
<tr><td rowspan="2">٦- د تدریس او زده کړې فعالیتونه</td><td rowspan="2">لومړني فعالیتونه او د انګیزې رامنځ ته کول:<br>۱. د سلام اچول او د احوال پوښتنه<br>۲. د انځور ښودل.<br>۳. د ورودي پوښتنې طرح<br>٤. د نقشې ښودل.</td><td>وخت په دقیقو</td></tr>
<tr><td>۲۰ دقیقې</td></tr>
</table>

<table>
<tr><th>د مطالبو سرليکونه</th><th colspan="2">د مطالبو شرح</th><th>وخت</th></tr>
<tr><td colspan="2">٧- د ښوونکي فعاليتونه</td><td>د زده کوونکو فعاليتونه</td><td rowspan="2">٧٠ دقيقې</td></tr>
<tr><td colspan="2">- د تختې پر مخ د لوست د سرليک ليکل.<br>- د تختې پر مخ د مهمو مطالبو او اشخاصو د نومونو ليکل.<br>- زده کوونکو ته د ښوونکي ځوابونه<br>- د لوست جمع بندي او خلاصه کول.</td><td>- د زده کوونکو پام او د سرليک ياداشت کول.<br>- پام او په کتابچو کې د ياداشتونو نيول.<br>- د زده کوونکو پوښتنې له ښوونکي څخه</td></tr>
<tr><td>٨- پوښتنو ته ځوابونه او يا په متن کې فعاليتونه</td><td colspan="3">١. د نورمانانو قومونو چې په سويدن کې يې ژوند کاوه په نهمه زيږديزې پيړۍ کې پر روسيې باندې يرغل پيل وکړ او د ترکيې او اوسني عراق سره يې سوداګريزې اړيکې ټينګې کړې.<br>٢. د روسي شهزاده ګانو د مغولانو خانانو ته ماليه ورکوله، خو دريم ايوان مغولانو ته د ماليې د ورکړې مخالفت وکړ او روسيه يې خپلواکه کړه.<br>٣. لوی پطر د اروپا له سفر څخه وروسته ، د اروپايي فرهنګ د اغيزې لاندې راغی او په روسيه کې يې په يولړ اصلاحاتو باندې لاس پورې کړ.<br>٤. روسيه د اروپا په لور د پراختيا غوښتنې له امله ، له سويډن سره په جګړه کې ښکيل شوه.<br>٥. لويه کاترينه، د روسيې د پوهې علاقه منده او هنر پالونکې پادشاه وه، هغې لهستان (پولنډ) ونيوه او ترکيه يې دې ته اړه کړه چې د روسيې بيړيو ته په توره بحيره کې د تللو او راتللو اجازه ورکړي.</td></tr>
<tr><td>٩- پوښتنو ته ځواب او وروستي فعاليتونه</td><td colspan="3">ډله ييز فعاليتونه په لوست کې وضاحت ورکړل شوی، هغه ته رجوع وکړئ.</td></tr>
<tr><td colspan="4">د ښوونکي لپاره اضافي معلومات<br>د روسيې تاريخ د ختيځ اسلاويانو د يوې ډلې له مهاجرت څخه پيل کيږي، د ختيځ اسلاويان په روسانو، اوکراينيانو او بلاروسيانو باندې ويشل کيږي.<br>روسيې په (٩٨٨ز) کال کې د مسيحيت دين له بيزانس څخه ومانه. له ديارلسمې پيړۍ نه وروسته د مسکو حکومت ورو ورو په مخکنيو فرهنګي مراکزو، له هغې جملې څخه د کيف په ښار باندې يرغل وکړ.</td></tr>
</table>

د روسې د قلمرو پراختيا په اتلسمې پيړۍ کې خپل اوج ته ورسيده او د لهستان څخه په ختيځ کې تر لوی اقيانوس پورې ورسيده.

بل مهم ټکی په روسيې باندې د مغولانو يرغل و، څکه مغولانو په (۱۲۲۳ز) کال کې روسانو ته پوره ماته ورکړه او د ولاديمير ښار يې چور کړ او وروسته د لهستان او مجارستان پرمخ روان شول. مغولانو د نوګورود ښار پرته ټوله روسيه ونيوله. د مغولانو يرغل هم د روسيې لپاره بد عواقب درلودل. مهم ښارونه ويجاړ او له فرهنګي پلوه يې ډير زيانونه وګالل.

دريم ايوان (لوی) مغولانو ته د باج له ورکولو څخه په ډډه کولو، د مغولانو په ځواکونو باندې په وار وار په حملو لاس پورې کړ او د مغولانو د ماتيدو لاملونه يې چې په دغه عصر کې په کوچنيو خانانو او جګړه ييزو ډلو ويشل شوی وو، برابر کړل.

خو د مسکو لومړنی واک چلوونکي (د تزار په نوم) څلورم ايوان و. څلورم ايوان چې د جدی ايوان او يا ايوان مخوف باندې هم مشهوره و د روسي سلطنت يې پياوړی کړ. هغه د روسيې نجيب زاده ګان لري او يا اعدام کړل. له دې حالاتو سره، ايوان مخوف يو ښه سياستمدار و او له کليسا سره يې ډيرې ښې اړيکې ټينګې کړې وې.

*د لا زياتو معلوماتو لپاره مراجعه وکړئ:*

*۱- تاريخ روسيه وغرب، تروتسکي.*

*۲- تاريخ روسيه و غرب، اسماعيل رامين.*

*۳- کليات تاريخ، اسماعيل دولت شاهي.*

د (اولسم) لوست د تدریس لارښود پلان

د تدریس وخت: دوه درسي ساعتونه

| ۱- د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرح | |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | چین په منځنیو او نویو پیړیو کې | |
| ټولیزه موخه | په منځنیو او نویو پیړیو کې د چین له تاریخ سره د زده کوونکو آشنا کول | |
| ۲- ځانګړې روزنیزې موخې (پوهنیزې، مهارتي، ذهنیتي) | هیله ده د لوست په پای کې زده کوونکي لاندې موخو ته ورسیږي:<br>۱. په منځنی او نوې پیړیو کې د چین د پاچاهانو له مهمو لړیو سره د زده کوونکو آشنایي.<br>۲. په پورتنیو پیړیو کې د چین د تمدن له مهمو لاسته راوړنو سره د زده کوونکو آشنایي.<br>۳. په پورتنیو پیړیو کې د چین له اقتصادي او ټولنیزې وضعي سره د زده کوونکو آشنایي.<br>٤. د تاریخي پیښو د تحلیل او پیژندنې د مهارت ترلاسه کول.<br>۵. له بشري تمدن او فرهنګ سره د علاقې رامنځ ته کول. | |
| ۳- د تدریس چلندونه | ۱- د ښوونکي وینا او وضاحت ۲- د زده کوونکو او ښوونکي پوښتنې او ځوابونه | |
| ۴- د تدریس توکي | تخته، تباشیر یا مارکر، انځور، د نړۍ نقشه | |
| ۵- د ارزونې چلندونه | تحریري او تقریري | |
| ٦- د تدریس او زده کړې فعالیتونه | لومړني فعالیتونه او د انګیزې رامنځ ته کول:<br>۱. د سلام اچول او د احوال پوښتنه.<br>۲. د ورودي پوښتنې طرحه کول.<br>۳. د انځورونو ښودل | وخت په دقیقو<br>۲۰ دقیقې |

| د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرح | | وخت |
|---|---|---|---|
| ۷- د ښوونکي فعالیتونه | | د زده کوونکو فعالیتونه | ۷۰ دقیقې |
| | - د تختې پر مخ د لوست سرلیک لیکل.<br>- د لوست د مهمو مطالبو او نومونو لیکل.<br>- د زده کوونکو پوښتنو ته د ښوونکي ځواب<br>- د لوست جمع بندي او خلاصه کول. | - د زده کوونکو پام او د سرلیک یاداشتول.<br>- د زده کوونکو پام او په کتابچو کې د یاداشتونو نیول.<br>- له ښوونکي څخه د لوست په اړه د زده کوونکو پوښتنې. | |
| ۸- پوښتنو ته ځوابونه او یا په متن کې فعالیتونه | ۱. د چین ښارونه په منځنیو پیړیو کې له ډیر پرمختګ څخه برخمن وو. د ساري په توګه د چانګان (شانګهای) په ښار کې له دوه میلیونو څخه ډیرو وګړو ژوند کاوه. دغه ښار په چټکتیا سره په یو نړیوال ښار باندې بدل شو.<br>۲. مغولانو له مغولستان څخه په چین باندې یرغل وکړ او هغه یې د ۱۳مې پیړۍ په پیل کې ونیو او سل کاله یې پر چین واکمني کوله.<br>۳. د چین خلکو په منځنیو پیړیو کې بزګران وو، د ځمکې اربابانو په پای کې د هغوی د تړول زیار حاصل اخیسته. د وچکالیو په وخت کې د ښو او غوره ځمکو د ترلاسه کولو لپاره یې په مهاجرت لاس پورې کاوه.<br>٤. پرتګالیانو هند ته له رسیدو وروسته، خپل ځانونه چین ته ورسول.<br>٥. د چین حکومت د کانتون بندر د سوداګرۍ لپاره د پرتګالیانو په مخ خلاص کړ. | | |
| ۹- پوښتنو ته ځواب او وروستي فعالیتونه | فعالیتونه د لوست په متن کې ارائه شوي دي، هغه ته رجوع وکړئ. | | |

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

د چین هیواد په ختیځې آسیا کې پروت دی. د چین نوم د هون د کورنۍ له نوم څخه اخیستل شوی دی چې له پارتیانو سره یې هم مهاله په چین باندې واکمني چلوله. دغه نوم د فارسي ژبې له لارې نورو ژبو ته لاره پیدا کړه.
د چین هیواد لرغونی تاریخ لري، ځینې وختونه یو موټی او ځینې وخت د څو هیوادونو په شان یو له بله جلا و. ځینې وخت ګاونډیو په دې هیواد یرغل کاوه چې له هغې جملې څخه، مغولانو د چنګیز خان په عصر کې چین د خپلې ولکې لاندې راوست.

دغه لوی آسیایي هیواد له افغانستان سره ۷٦ کیلومتره، له پاکستان سره ۵۲۳ کیلومتره، له هند سره ۳۳۸۰ کیلومتره، له مغولستان سره ٦۷۷ کیلومتره، تاجکستان سره ٤١٤ کیلومتره، له قرغیزستان سره ۸۵۸ کیلومتره ګډه پوله لري.

زموږ د هیواد ډیرې زیاتې تاریخي اړیکې له چین سره د وریښمو له نامتو لارې ترسره کیدلې. دغې لارې د کالیو له انتقال سربیره د کیسو او اسطورو، اعتقاداتو، ژبو، ادیانو، هنرونو، علمي پرمختګ چې د نجوم او طب پـه اړه وو او حتی د لوبو په انتقال کې ارزښناک رول لوباوه.

له اسلام څخه وروسته ، د لومړي ځل لپاره اسلام د عجمیانو یا پارسیانو په واسطه چین ته لاره پیدا کړه چې لـه دې امله د چین مسلمانانو د ډیرې مودې لپاره په فارسي ژبه لمونځ ویلو او د لمونځ نیت یې په بشپړه توګه په فارسي ادا کاوه. د فارسي- چیني لغت نامه هم د مغولانو په حکومت چین کې ولیکل شوه او له چین سره یې د افغانستان او ایران په سوداګریزو اړیکو کې ډیره مرسته وکړه.

*د لا زیاتو معلوماتو لپاره رجوع وکړئ:*

*۱- د نړۍ تاریخونه.*

*۲- دایرة المعارف.*

*۳- کلیات تاریخ، اسماعیل دولتشاهي.*

*٤- تاریخ قرون وسطی، پروفیسور کاسمینسکي.*

**د (اتلسم) لوست د تدریس لارښود پلان**

**د تدریس وخت: دوه درسي ساعتونه**

| ۱- د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرح | |
|---|---|---|
| **د لوست موضوع** | په منځنیو پیړیو کې د اروپا عمومي اوضاع | |
| **ټولیزه موخه** | په منځنیو پیړیو کې د اروپا له عمومي وضعیت سره د زده کوونکو آشنایي | |
| **۲- ځانګړې روزنیزې موخې (پوهنیزې، مهارتي، ذهنیتي)** | هیله ده د لوست په پای کې زده کوونکي لاندې موخو ته ورسیږي:<br>۱. زده کوونکي دې په منځنیو پیړیو کې د اروپا له اقتصادي وضعیت سره آشنا شي.<br>۲. زده کوونکي دې په منځنیو پیړیو کې د اروپا لـه ټولنیز وضـعیت سـره آشنا شي.<br>۳. زده کوونکي دې د اروپا له سیاسي وضعیت سره آشنایي پیدا کړي.<br>٤. زده کوونکي دې د اروپا له فرهنګي وضعیت سره آشنا شي.<br>٥. زده کوونکي دې په دې دوره کـې د اروپـا د مـذهبي وضـعیت پـه اړه معلومات ترلاسه کړي.<br>مهارتي: د منځنیو پیړیو د تاریخي نقشې ترسیم او د اروپا د اوضاع د تحلیـل د مهارت ترلاسه کول.<br>ذهنیتي: د ټولو ادیانو په اړه د ذهنیت ترلاسه کول او په دې اړه ذهنیت چې خرافات تر کومې کچې د وروسته پاتې کیدو لامل ګرځي. | |
| **۳- د تدریس چلندونه** | ۱- په ټولګي کـې د ښـوونکي توضـیح کـول ۲- مباحثـه او مناقـشه، د زده کوونکو ترمنځ پوښتنې او ځوابونه | |
| **۴- د تدریس توکي** | تخته او تباشیر یا مارکر، نقشه، تاریخي اطلس، درسي کتاب | |
| **۵- د ارزونې چلندونه (شیوه)** | هرځو ورځې وروسته یوځل تحریري او تقریري آزموینه | |
| **٦- د تدریس او زده کړې فعالیتونه** | لومړنی فعالیتونه: د سلام اچول ، حاضري اخیـستل. د احوالـ پوښتنه، د تدریس د وسایلو تیارول، د زده کوونکو له روانـي او روحي وضعیت څخه اطلاع اخیستل او د تیر لوست په اړه پوښتنه کول.<br>د انګیزې رامنځ ته کول:<br>د نوي لوست په اړه د یوې پوښتنې له طرحې او د لوسـت د بحث وړ دورې یعنې د منځنیو پیړیـو اړونـد د یـو انځـور پـه ښودلو سره باید لوست پیل شي. | وخت په دقیقو<br>۱۲ دقیقې<br>۸ دقیقې |

<table>
<tr><th>د مطالبو سرلیکونه</th><th colspan="2">د مطالبو شرح</th><th>وخت</th></tr>
<tr><td colspan="2">۷- د ښوونکي فعالیتونه<br>- د لوست په اړه د ښوونکي توضیح<br>- ښوونکی باید له زده کوونکو پوښتنه وکړي.<br>- ښوونکی دې د لوست جمع بندي او نتیجه ګیري وکړي.</td><td>د زده کوونکو فعالیتونه<br>- زده کوونکي باید د ښوونکي توضیح ته غوږ ونیسي.<br>- زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځواب وایي.<br>- زده کوونکي د ښوونکي خبرو ته غوږ نیسي او یاداشت یې نیسي.</td><td>۷۰ دقیقې</td></tr>
<tr><td>۸- پوښتنو ته ځوابونه او یا په متن کې فعالیتونه</td><td colspan="3">۱. په منځنیو پیړیو کې له ټولنیز پلوه خلك په دوو طبقو ویشل شوي وو. پورتنۍ طبقه یعنې اشراف، نجبا، روحانیون او ستر ځمکه لرونکي وو د ټیټې طبقې خلکو له اقتصادي پلوه په ټیټې سطحې کې ځای درلود چې کروندګرو یې ډیره برخه جوړوله.<br>۲. په منځنیو پیړیو کې پاپان له ډیر صلاحیت څخه برخمن وو، لکه: د امپراتورانو ګوښه کول ا و ټاکل، د اشرافیت د مقامونو ورکول، د هغو اشخاصو تکفیرول چې د دوی په خلاف یې په عمل لاس پورې کاوه.<br>۳. د کارولنژین کورنی بنسټ ایښودونکی شارل مارتل و.</td></tr>
<tr><td>۹- پوښتنو ته ځواب او وروستي فعالیتونه</td><td colspan="3">له ټولنیز پلوه په منځنیو پیړیو کې کلکه ټولنیزه نابرابري واکمنه وه او طبقاتي تضاد شتون درلود چې ټیټ ټولنیز طبقات له دغه ناوړه ټولنیز وضعیت څخه ډیر اغیزمن وو. په ځانګړې توګه کروندګر چې ځینې وختونه یې په بلاعوض ډول د خپلو اربابانو په ځمکو کې کار کاوه او له ځمکې سره یوځای پیرودل او پلورل کیدل.<br>له اقتصادي پلوه هم خلك په بیلابیلو طبقو ویشل شوي وو. لوړ طبقات د مالیې له ورکړې معاف وو، خو ټیټو طبقو لوړ مالیات ورکول. د محصولاتو ډیره برخه اربابانو ترلاسه کوله. د اربابانو املاك دومره پراخه و چې سیندونه، غرونه او لوړې ځمکې یې یوه برخه وه.</td></tr>
</table>

### د ښوونکي لپاره اضافي معلومات

ښاغليو ښوونکو او ګرانو همکارانو!

دغه لوست چې موږ يې په منځنيو پيړيو کې د اروپا د عمومي اوضاع تر سرليک لاندې وايو، موږ ته په منځنيو پيړيو کې د اروپا د عمومي وضعيت په اړه معلومات راکوي.

موږ د اروپا له ټولنيز، اقتصادي، فرهنګي او مذهبي وضعيت سره په لنډه توګه آشنايي پيدا کوو. د مذهبي مسايلو په بحث کې کله چې وايو چې منځنۍ پيړۍ دايمان عصر بلل کيږي. په دې معنا چې په همدې دوره کې د حضرت عيسى (ع) له راځرګنديدو وروسته خلکو تر ډيره په خپلو مذهبي او ديني مسايلو تکيه درلوده او له دنيوي مسايلو سره علاقمند نه وو.

کليسا د وخت مطلقه قدرت و. مذهب د اروپا د خلکو پر ټولو برخو ولکه ټينګه کړې وه. مرکزي حکومت شتون نه درلود او سوداګرۍ له پراختيا لويدلې وه. خلکو خپل ځان ته د دنيا او دنيوي مسايلو په اړه د فکر کولو حق نه ورکاوه او د فکر او عقل له ځواک څخه يې کمه ګټه اخيستله. علوم د مسيحي دين له مسايلو سره تړلي وو.

همدارنګه د منځنيو پيړيو د سياسي مسايلو په برخه کې د کارولنژين کورنۍ نوم اخيستل شوی دی. په دې معنا چې په منځنيو پيړيو کې د روم د امپراطورۍ له سقوط څخه وروسته په اروپا کې ډيرو کورنيو واک درلوده چې د بيلګې په توګه د مدونژين، کارولنژين، د هوهان شناوفن لويه امپراطورۍ او د هاپسبورګ له کورنۍ څخه يوازې د کارولنژين کورنۍ په معرفي کيدو مو اکتفا وکړه.

*ګرانه ښوونکيه! د ډيرو معلوماتو لپاره لاندې منابعو ته مراجعه وکړه.*

۱. *تاريخ قرون وسطى، پروفيسور کاسمينکي.*
۲. *کليات تاريخ، اسماعيل دولتشاهي.*

*عصر ايمان تاريخ تمدن، ويل او آريلي دورانت.*

د (نولسم) لوست د تدریس لارښود پلان

د تدریس وخت: دوه درسي ساعتونه

| ۱- د مطالبو سرليکونه | د مطالبو شرح | |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | صليبي جګړې | |
| ټولیزه موخه | له صليبي جګړو سره د زده کوونکو آشنايي. | |
| ۲- ځانګړې روزنيزې موخې (پوهنيزې، مهارتي، ذهنيتي) | هيله ده د لوست په پای کې زده کوونکي لاندې موخو ته ورسيږي:<br>۱. د صليبي جګړو له عواملو سره د زده کوونکو آشنا کول.<br>۲. زده کوونکي دې د صليبې جګړو د پايلو په اړه معلومات ترلاسه کړي.<br>۳. زده کوونکي دې په دې اړه چې دغه جګړې د کومو اديانو د پيروانو ترمنځ پيښې شوې، معلومات ترلاسه کړي.<br>٤. د زده کوونکو پوهول په دې اړه چې څو صليبي جګړې پيښې شوي دي.<br>د څېړنې د حالت رامنځته کول د دې ټکي په اړه چې مسيحي رهبران د دين په نامه، د جګړې او وينې تويونې لامل شول. | |
| ۳- د تدريس چلندونه | ۱- د ښوونکي خبرې او څرګندونې ۲- د زده کوونکو ترمنځ خبرې اترې او د هغه د پايلې وړاندې کول. | |
| ۴- د تدريس توکي | درسي کتاب، تخته، تباشير يا مارکر، د صليبي جګړو د وخت او اروپا نقشه. | |
| ۵- د ارزونې چلندونه (شيوه) | وخت په وخت تحرير او تقريري آزموينې. | |
| ٦- د تدريس او زده کړې فعاليتونه | لومړني فعاليتونه او د انګيزې رامنځ ته کول:<br>- د سلام اچول او داحوال پوښتنه. | وخت په دقيقو |
| | - د داسې انځور په ښودلو سره دې پوښتنه وشي چې له لوست سره اړيکه ولري. | ۲۰ دقيقې |

| د مطالبو سرليکونه | د مطالبو شرح | | وخت |
|---|---|---|---|
| ۷- د ښوونکي فعاليتونه | | د زده کوونکو فعاليتونه | ۷۰ دقيقې |
| - ښوونکی د لوست له پيل وړاندې د لوست اړوند يو انځور ښيي او بيا يې توضيح کوي.<br>- ښوونکی له زده کوونکو پوښتنې کوي.<br>- ښوونکی نتيجه ګيري او جمع بندي کوي. | | - زده کوونکي د ښوونکي څرګندونو ته غوږ نيسي.<br>- زده کوونکي ځوابونه ورکوي.<br>- زده کوونکي ښوونکي ته غوږ نيسي.<br>- زده کوونکي خبرې اترې شروع کوي. | |
| ۸- پوښتنو ته ځوابونه او يا په متن کې فعاليتونه | مؤرخين په دې اړه بيلابيل نظريات لري په يو قول سره اته صليبي جګړې او په بل قول سره دولس صليبي جګړې پيښې شوي دي.<br>مسيحيت د يوولسمې ميلادي پيړۍ په شا او خوا کې د پرمختګ په حال کې و. | | |
| ۹- پوښتنو ته ځواب او وروستي فعاليتونه | ۱. د ختيځ له شتمنيو سره د عيسويانو ليوالتيا. د سوداګريزو مرکزونو له جوړېدو سره د عيسوي دولتونو ليوالتيا. ځکه چې هغوی غوښتل له دې لارې له ليرې ختيځ سره سوداګرۍ پيل کړي. يوشمير کروندګر چې د اشرافو تر استثمار لاندې وو، فکر يې کاوه چې له جګړې او اروپا ته له ستنيدو وروسته به ښه ژوند ولري.<br>۲. د صليبي جګړو په پايله کې ډير اشراف ووژل شول او کروندګرو بيا خپله خپلواکي ترلاسه کړه چې په پايله کې يې فيوډاليزم کمزوری شو.<br>د ختيځ او لويديځ ترمنځ سوداګرۍ پرمختګ وکړ او ښارونو پراختيا او وده وکړه. د روم او يونان ادبيات چې له ياده وتلی وو، ختيځ ته ورسيدل او همدارنګه اروپايان د ختيځ له فرهنګ سره آشنا شول. | | |

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

په يوولسمه ميلادي پيړۍ کې د آسيا او لويديځ ډيری برخې د ترکي سلجوقيانو په ولکه کې وې او هغوی د اسلام د سپيڅلي دين د ټينګښت خورولو او پاينښت لپاره هڅې کولې، نو د عيسويانو لپاره په فلسطين کې د دوی د مقدسو ځايونو زيارت ستونزمن و. ځکه چې فلسطين د عيسويانو په وړاندې د ځانګړې سپيڅلتيا لرونکی دی. همدغه مطلب يې پلمه کړ او پر بيت المقدس يې په بريد لاس پورې کړ چې د دغې حملې په پايله کې د عيسويانو او مسلمانانو ترمنځ سختې جګړې پيښې شوې، خو د صليبي جګړو اصلي لامل د ختيځ شتمنيو ته د لويديځ د عيسويانو طمع وه. همدارنګه ځو ځلې د صليبي جګړو له کولو يې موخه د خپل قدرت او نفوذ زياتول و او غوښتل يې چې ولس او ګناهکار خلك په دغو جګړو کې له ځان سره يوځای کړي.

غریب او ماجراجو خلك د چور او چپاول په فکر کې وو، شوالیان، جګړه ماران او ځايي شاهان هم چې د شهرت او ویاړ موندلو په لټه کې وو، په صلیبي جګړو ئي لاس پورې کړ. له نامتو صلیبي جګړو څخه چې د (۱۵۹٦– ۱۲۹۱م) ترمنځ پیښې شوي دي څلور نامتو جګړې يې دا دي:

لومړۍ صلیبي جګړه (۱۰۹٦م) چې د کروندګرو د صلیبي جګړې په نامه یادیږي.

دویمه صلیبي جګړه (۱۱٤٤م) چې په هغې کې د فرانسې پاچا او د آلمان امپراطور ګډون کړی و.

دریمه صلیبي جګړه (۱۱۸۹– ۱۱۹۱م) چې په هغې کې هم د اروپایانو ورو اشخاصو ګډون درلود.

څلورمه صلیبي جګړه (۱۲۰۱م) چې د بحارو‌ینزي په واسطه له ایټالیا څخه ترسره شوه.

ښاغلی ښوونکی دې د زیاتو معلوماتو لپاره د اسماعیل دولتشاهي کتاب (کلیات تاریخ) او د اشپیل فوګل اثر (تمدن مغرب زمین) ته مراجعه وکړي.

**د (شلم) لوست د تدریس لارښود پلان**

**د تدریس وخت: دوه درسي ساعتونه**

| ۱- د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرح | |
|---|---|---|
| **د لوست موضوع** | آیا له رنسانس سره آشنایي لرئ؟ | |
| **ټولیزه موخه** | د رنسانس د وخت له علمي او فرهنګي بدلونونو سره د زده کوونکو آشنایي. | |
| **۲- ځانګړې روزنیزې موخې (پوهنیزې، مهارتي، ذهنیتي)** | هیله ده د لوست په پای کې زده کوونکي لاندې موخو ته ورسیږي:<br>۱. زده کوونکي دې له رنسانس څخه وروسته له علمي بدلونونو سره آشنا شي.<br>۲. زده کوونکی دې د ښارونو د رامنځ ته کیدو او ودې په هکله معلومات ترلاسه کړي.<br>۳. زده کوونکی دې واک ته د پادشاهانو د رسیدو له څرنګوالي سره آشنا شي.<br>٤. زده کوونکی دې په دې هکله چې څرنګه ملوك الطوایفي له منځه ولاړه، معلومات ترلاسه کړي.<br>مهارتي:<br>۱. زده کوونکي دې وکولای شي چې د رنسانس دورې یو ښار رسم کړي.<br>۲. زده کوونکی دې په دې هکله چې یو پادشاه څرنګه کولای شي چې خپل قدرت ټینګ کړي وضاحت ورکړي.<br>ذهنیتي:<br>زده کوونکي دې د رنسانس دورې او د منځنیو پیړیو په اړه روښانه او بیلابیل تصور پیدا کړي. | |
| **۳- د تدریس چلندونه** | ۱- د ښوونکي وینا په ټولګي کې ۲- په ټولګي کې د لوست په اړه تر خبرو اترو وروسته، د زده کوونکو د نظریاتو اوریدل. | |
| **۴- د تدریس توکي** | درسي کتاب، تخته، تباشیر یا مارکر، نقشه او له دې دورې نه د ځینو علماوو او پوهانو انځورونه | |
| **۵- د ارزونې چلندونه (شیوه)** | په هر ساعت کې د لوست په پای کې ټولګي والې پوښتنې او همدارنګه تقریري او تحریري آزموینه | |
| **۶- د تدریس او زده کړې فعالیتونه** | لومړني فعالیتونه او د انګیزې رامنځ ته کول:<br>د سلام اچول او د احوال پوښتنه، د نوي لوست په اړه د پوښتنو په طرح کولو او یا د منځنۍ پیړۍ په اړه د لوست د انځور په ښودلو سره لوست باید پیل شي. | وخت په دقیقو<br>۲۰ دقیقې |

<table>
<tr><th>د مطالبو سرلیکونه</th><th colspan="2">د مطالبو شرح</th><th>وخت</th></tr>
<tr><td colspan="2">۷- د ښوونکي فعالیتونه</td><td>د زده کوونکو فعالیتونه</td><td rowspan="2">۷۰<br>دقیقې</td></tr>
<tr><td colspan="2">- ښوونکی د لوست توضیح پیلوي.<br>- ښوونکی پوښتنو ته ځواب وايي.<br>- ښوونکی د راتلونکې ورځې لپاره زده کوونکو ته دنده ورکوي.</td><td>- زده کوونکي د ښوونکي توضیحاتو ته غوږ نیسي.<br>- زده کوونکي د لوست په اړه پوښتنه کوي.<br>- زده کوونکي د ښوونکي ځواب ته غوږ نیسي او یاداشت کوي یې.<br>- زده کوونکي غوږ نیسي او خپل چمتووالی ښيي.</td></tr>
<tr><td>۸- پوښتنو ته ځوابونه او یا په متن کې فعالیتونه</td><td colspan="3">۱. په دې دوره کې له ۱٤– ۱٦ زیږدیزې پیړۍ پورې د علومو او فرهنګ په برخه کې بدلونونه منځ ته راغلل. رنسانس د اروپا ځیره ورو ورو بدله کړه، د خلکو تر منځ د بشردوستی فرهنګ رواج شو. هنرمندانو او پوهانو نوي نظریات وړاندې کړل. خلك په دې دوره کې د دنیا او د هغې ښیګڼو ته متوجه شول.<br>۲. ځرنګه چې د هسپانیې شمالي برخې د عیسویانو په لاس کې او سویلي برخې یې د مسلمانانو په لاس کې وې او د هغو جګړو په پایله کې چې د مسلمانانو او عیسویانو ترمنځ پیښې شوې، ملوك الطوایفي له منځه ولاړه.</td></tr>
<tr><td>۹- پوښتنو ته ځواب او وروستي فعالیتونه</td><td colspan="3">فعالیتونه ۱:<br>د رنسانس نه مخکې د اروپا خلکو یوازې جنت ته د تللو په موخه د ځان په چمتو کولو فکر کاوه خو د رنسانس په دوره کې خلك دنیوي چارو ته متوجه شول. د چاپ ماشین اختراع شو. د یونان او روم فرهنګ د خلکو تر منځ تبلیغ کیده. په ښار کې اوسیدنه پیل شوه او د فیودالزم کمزورتیا پیل شوه.<br>فعالیتونه ۲:<br>ښارونو زیاتره په ساحلي سیمو کې وده وکړه. په دغو ځایونو کې بزګران او فیودالي واکمنان لږ وو. د بندري ښارونو وده لومړی په ایټالیا او وروسته په آلمان کې له نورو ښارونو څخه مخکې پیل شوه. په دې دوره کې د یو متوسط ښار د وګړو شمیر پنځه زره تنه او په لویو ښارونو کې شلو زرو تنو ته رسیده او د ښارونو داخلي منظره تل د تغییر په حال کې وه.</td></tr>
</table>

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

رنسانس په لغت کې د یونانې فرهنګ او علومو د بیا راژوندي کیدو په معنا دی چې په (۱۵) پنځلسمه پیړۍ کې په اروپا کې پیل شو او د اروپا د منځنیو پیړیو څیره یې بدله کړه. په دې دوره کې ډیر زیات پوهان راڅرګند شول لکه: مونتسکو، ولتر، ژانژاک روسو او دیدرو آدام اسمیت او داسې نور او ډیر نظریات یې د بیلابیلو علومو او فنونو په برخه کې وړاندې کړل. ادبیاتو او د ژبې دستور په دې دوره کې وده وکړه او حتی د دولت په اړه نظریات وړاندې شول. څرنګه چې د منځنیو پیړیو خلک په دې فکر کې وو چې دولت یوه الهي لورینه ده، خو د رنسانس د عصر پوهانو دا نظریه رد کړه او ویل یې چې دولت د انسان په لاس جوړ شوی محصول دی. کشفیات او اختراعات په نورو برخو کې هم رامنځ ته شول چې د روښانه راتلونکې په لور لارښوونه شوه.
ښاغلي ښوونکي دې د لا زیاتو معلوماتو لپاره د امشیل فوګل د مغرب زمین تمدن کتاب ته مراجعه وکړي.

**د (یویشتم) لوست د تدریس لارښود پلان**

**د تدریس وخت: دوه درسي ساعتونه**

| ۱- د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرح | |
|---|---|---|
| **د لوست موضوع** | د علم، ادب او فرهنګ په برخه کې بدلونونه | |
| **ټولیزه موخه** | په اروپا کې له رنسانس څخه وروسته د اختراعاتو علمي او ادبي بدلونونو سره د زده کوونکو آشنايي. | |
| **۲- ځانګړې روزنیزې موخې (پوهنیزې، مهارتي، ذهنیتي)** | هیله ده د لوست په پای کې زده کوونکي لاندې موخو ته ورسیږي:<br>۱. د هغو علماوو او پوهانو له نومونو سره د زده کوونکو آشنايي چې له رنسانس څخه وروسته یې بدلونونه رامنځته کړل.<br>۲. له رنسانس څخه وروسته د اختراعاتو او اکتشافاتو په اړه د زده کوونکو معلومات ترلاسه کول.<br>مهارتي:<br>- زده کوونکي باید د رنسانس د پیر د علم او ادب د پراختیا د تحلیل قدرت پیدا کړي.<br>- زده کوونکي باید د رنسانس د پیر د اکتشافاتو او بدلونونو له مفهوم سره آشنا شي او په دې اړه دې خبرې وکړي.<br>ذهنیتي:<br>- په دې اړه ذهنیت چې په دې دورو کې کشفیات او د علم او ادب په برخه کې پاملرنه تر کومې اندازې پورې د بشر د پرمختګ لامل شوی دی. | |
| **۳- د تدریس چلندونه** | ۱- د لوست په اړه د ښوونکي خبرې او وضاحت ۲- د زده کوونکو خبرې اترې او د هغوی سوال او ځواب | |
| **۴- د تدریس توکي** | درسي کتاب، د رنسانس له دورې څخه د نامتو علماوو انځورونه او د تلسکوب انځور، تباشیر او مارکر | |
| **۵- د ارزونې چلندونه** | له زده کوونکو څخه د پوښتنو طرح کول.<br>تقریري او تحریري امتحان کله چې ښوونکي وغواړي. | |
| **۶- د تدریس او زده کړې فعالیتونه** | لومړني فعالیتونه او د انګیزې رامنځ ته کول:<br>ښوونکی سلام اچوي او د زده کوونکو د حال پوښتنه کوي وروسته د پوښتنې په طرح کولو او یا د بحث وړ دورې اړونده انځور په ښودلو سره په زده کوونکو کې انګیزه رامنځ ته کوي. | وخت په دقیقو<br>۲۰ دقیقې |

<table>
<tr><th>د مطالبو سرلیکونه</th><th colspan="2">د مطالبو شرح</th><th>وخت</th></tr>
<tr><td colspan="2">۷- د ښوونکي فعالیتونه</td><td>د زده کوونکو فعالیتونه</td><td rowspan="2">۷۰ دقیقې</td></tr>
<tr><td colspan="2">- د لوست په اړه د ښوونکي توضیح<br>- ښوونکی باید له زده کوونکو څخه د لوست په اړه پوښتنه وکړي.<br>- ښوونکی لوست جمع بندي کوي او نتیجه یې اخلي.</td><td>- زده کوونکي توضیحاتو ته پام کوي.<br>- زده کوونکي ځوابونه وړاندې کوي.<br>- زده کوونکي د ښوونکي خبرو ته غوږ نیسي او یاداشت یې نیسي.</td></tr>
<tr><td>۸- پوښتنو ته ځوابونه او یا په متن کې فعالیتونه</td><td colspan="3">۱. د رنسانس په وخت کې د اروپا خلک ورو ورو خپل ژوند او نړۍ ته متوجه شول، هنرمندان، پوهان او لیکوالان په بیلابیلو برخو کې راڅرګند شول چې د هغوی آثار تر دې مهاله پاتې دي.<br>۲. د دې دورې له مشهورو لیکوالانو څخه کولای شو د ژانژاک روسو، مونتسکو او ولتر نومونه واخلو.<br>۳. د رنسانس په وخت کې هغه پرمختګ چې د طب او طبابت په برخه کې رامنځ ته شو د ویلیم هاروي په نوم د یو پوه څېړنه وه چې د بدن او په بدن کې د وینې ګرځیدو او انسان په اړه یې مطالعه وکړه.</td></tr>
<tr><td>۹- پوښتنو ته ځواب او وروستي فعالیتونه</td><td colspan="3">لومړۍ ډله: د رنسانس دورې اختراعاتو بشر د ښه او غوره ژوند په لور روان کړ څرنګه چې د انسان د بدن او په بدن کې د وینې ګرځیدو په اړه مطالعه وشوه، د پرمختللي طب او طبابت په لور لاره وه. په پایلې کې د طب په اړه، سیاراتو او سماوي اجرامو او کومې پیښې چې په کیهان کې منځ ته راتلې، معلومات یې لاس ته راوړل او د چاپ ماشین په کشفولو سره انسانان په ډېره چټکتیا سره کتابونو، مجلو او تازه اطلاعاتو ته لاس پیدا کوي.<br>دویمه ډله: د مدرسو د جوړیدو نه مخکې خلکو خاصتاً لوړې طبقې د انځورونو په واسطه زده کړې کولې، خو د رنسانس د عصر نه وروسته خلکو د مدرسو په جوړولو لاس پورې کړ او د کلیسا نه بهر تعلیمات پیل شول.</td></tr>
</table>

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

پوهان د رنسانس دوره  یعنې شپاړسمه او اوولسمه پیړۍ د نبوغ عصر نوموي، ځکه چې دا عصر د ګالیله او آیزاک نیوتن لوی عصر دی چې دوی د طبیعت د رازونو د موندلو په لټه کې شول.

د بشر علمي اطلاعات تر ډېره په سمندري چلند (دریانوردي)، د کانونو راایستلو، بزګري او صنعتي وسایلو کې په کار وړل کیدل. همدارنګه علمي نظریات د اروپایي ټولنې ځانګړتیا شوه. لئونارډو داوینچي د رنسانس د وخت د ایټالیا له مشهورو څیرو څخه دی چې نقاش، مهندس او طبیعي عالم و. همدارنګه د وینې د ګرځیدو فکر او د لمر په شاو خوا د ځمکې انتقالي حرکت هم په مغز کې لاره پیدا کړه او د سمندر لاندې ودانیو او الوتکو لپاره یې طرحې رامنځ ته کړې. د دې دورې نامتو پوهان فرانسس بیکن، دکارت،  نیوتن، کپرنیک، ګالیله او داسې نور دي.

ښاغلي ښوونکي دې د لا زیاتو معلوماتو لپاره د تاریخ جهان نو، لومړی جلد، د دابوت روزون پالمر لیکنه، د ابوالقالم طاهري ژباړې ته مراجعه وکړي.

**د (دوه ویشتم) لوست د تدریس لارښود پلان**

**د تدریس وخت: دوه درسي ساعتونه**

| ۱- د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرح | |
|---|---|---|
| **د لوست موضوع** | د اروپا لوی انقلابونه | |
| **ټولیزه موخه** | د اروپا له لویو انقلابونو، د انګلستان صنعتي انقلاب او د فرانسې لوی انقلاب سره د زده کوونکو آشنایي. | |
| **۲- ځانګړې روزنیزې موخې (پوهنیزې، مهارتي، ذهنیتي)** | هیله ده د لوست په پای کې زده کوونکي لاندې موخو ته ورسیږي:<br>۱. زده کوونکي دې له صنعتي انقلاب څخه وروسته د اختراعاتو په اړه معلومات لاس ته راوړي.<br>۲. په ۱۸ پیړۍ کې د فرانسې د خلکو له ټولنیز وضعیت سره د زده کوونکو آشنایي.<br>۳. زده کوونکي دې په دې اړه چې څرنګه ټیټې طبقې لاس په کار شوې او لوی انقلاب یې په لاره واچاوه معلومات ترلاسه کړي.<br>٤. د دې دورې له یو لوی پادشاه (شپاړسم لویی) سره د زده کوونکو آشنایي<br>مهارتي: په زده کوونکو کې د دې دوو انقلابونو د پایلو د ارزونې قدرت باید پیدا شي.<br>ذهنیتي: په دې اړه ذهنیت چې انقلابونه تر کومې اندازې د بشریت په پرمختګ کې اغیزمن وو. | |
| **۳- د تدریس چلندونه** | ۱- توضیح ۲- د زده کوونکو مباحثه، د هغوی سوال او ځواب | |
| **۴- د تدریس توکي** | تخته او تباشیر یا مارکر، درسي کتاب، د انقلاب په اړه ځینې انځورونه او نقشه | |
| **۵- د ارزونې چلندونه (شیوه)** | سوال او ځواب او د وخت په دمو کې تحریري او تقریري آزموینه | |
| **۲- د تدریس او زده کړې فعالیتونه** | لومړني فعالیتونه او د انګیزې رامنځ ته کول:<br>ښوونکی سلام اچوي او د زده کوونکو د حال پوښتنه کوي، وروسته د پوښتنې په طرح او یا د دغو انقلابونو په اړه د انځور ښودلو سره په زده کوونکو کې انګیزه رامنځته کوي. | وخت په دقیقو<br>۲۰ دقیقې |

| د مطالبو سرليکونه | د مطالبو شرح | | وخت |
|---|---|---|---|
| ۷- د ښوونکي فعالیتونه | | د زده کوونکو فعالیتونه | ۷۰ دقیقې |
| | - د لوست په اړه د ښوونکي وضاحت.<br>- ښوونکی باید له زده کوونکو څخه د لوست په اړه پوښتنې وکړي.<br>- ښوونکی لوست جمع بندي کوي او نتیجه یې اخلي. | - زده کوونکي توضیحاتو ته پاملرنه کوي.<br>- زده کوونکي ځوابونه وړاندې کوي.<br>- زده کوونکي د ښوونکي خبرو ته غوږ نیسي او یاداشت کوي یې. | |
| ۸- پوښتنو ته ځوابونه او یا په متن کې فعالیتونه | ۱. د بخار ماشین د جیمزوات په واسطه اختراع شو.<br>۲. د انګلستان صنعتي انقلاب وروسته په اروپايي هیوادونو کې، لکه: بلژیک، فرانسه او آلمان کې رامنځ ته شو.<br>۳. له اقتصادي ماتې او د دولت د خزانې له تشیدو وروسته، شپاړسم لویي نشو کولای چې عام وګړي کنترول کړي. د دریيمې طبقې خلک یا د ټولنې ټیټه طبقه راټول شول او لویه غونډه یې جوړه کړه او هغه یې ملي غونډه یاده کړه. | | |
| ۹- پوښتنو ته ځواب او وروستي فعالیتونه | لومړۍ ډله:<br>لومړی دا چې صنعتي انقلاب تر (۱۸۵۰ز) کاله پورې لویه بریتانیا د نړۍ تر ټولو شتمن هیواد باندې بدله کړه. د بخار او د رخت اوبدلو ماشین اختراع او د اوسپنې د ویلې کولو فابریکو د صنعتي پیچلو ماشینونو د جوړولو په لور د بشر په پرمختګ کې مهم رول درلود.<br>دویمه ډله:<br>په دې دوره کې د فرانسې د دولت یو عمده ځانګړتیا د خلکو ټولنیز او اقتصادي وضعیت ته نه پاملرنه وه، د شپاړسم لویې دولت د اقتصادي ماتې سره مخامخ شو چې دغه حالت د ټولنې پر ټیټو طبقو باندې د مالیاتو د لوړوالي لامل شو، له دې کبله ویلی شو چې د دې دورې عمده ځانګړتیا ټولنیزه ناانډولي او اقتصادي کمزورتیا وه. | | |

## د ښوونکي لپاره اضافي معلومات

صنعتي انقلاب په انګلستان کې پیل شو ځکه چې دې هیواد خام مواد له بهرنیو بازارونو څخه په پیسو اخیستل او خپله هم د اوسپنې او د ډبرو سکرو د کانو درلودونکي و او له بلې خوا تر ټولو شتمن خلک وو چې غوښتل یې خپلې پانګې په کار واچوي. صنعتي انقلاب په انګلستان کې د یولړ اختراعاتو سره په نساجي صنعت کې پیل شو او د نورو هیوادو پوهانو او صنعتګرانو هم له دې خوځښت سره مرسته وکړه.

صنعتي انقلاب چې له نساجي څخه پیل شوی و، په چټکتیا سره نورو صنایعو ته خپور شو، لکه: د بخار ماشین چې نوی بدلون یې د لیږد او رالیږد په برخه کې رامنځ ته کړ. په (۱۸۰۷ز) کال کې یو امریکایي کس د خولتن په نوم د بخار یوه بیړۍ اختراع کړه. همدارنګه په (۱۸۹٦ز) کال کې د الکساندر ګراهام بل په واسطه تیلیفون اختراع شو. په همدې ترتیب سره ډیرې زیاتې کارخانې رامنځ ته شوې د (۱۸۰۷ز) کال وروسته اقتصادي بدلونونه په چټکتیا سره راڅرګند شول او د بریښنا او تیلو له قوو څخه ګټه اخیستل کیده.

د فرانسې د لوی انقلاب په رامنځته کیدو کې ډیر لاملونه شامل وو، لکه:

۱- د واکمنانو ظلم او تیری.

۲- بیلابیلو طبقاتو کې نابرابري.

۳- د مالیاتو نابرابري.

٤- د حکومت پر څرنګوالي باندې نیوکه، خو د فرانسې د لوی انقلاب اصلي علت د دولت مالي ماته وه چې د دربار په ډیره پیمانه خرچه او د وسله والو ځواکونو ډیر مصارف د دولت د پوروونو یو لامل و.

له دې کبله د ټولنې ټیټې طبقې په پاڅون باندې لاس پورې کړ، کارخانې یې ویجاړې کړې او ښارونه په وحشت کې پاتې شول. په (۱۷۸۹ز) کال کې فرانسه په انقلاب کې راایساره شوه چې د جګړو او ټولنیزو بدلونونو پیلامه وه.

*ګرانه ښوونکیه! د لا زیاتو معلوماتو لپاره د مغرب زمین تمدن کتاب دویم جلد- د اشپیل فوګل او تاریخ جهان نو دویم جلد د رابرت روزون پالمرلیکنه د ابوالقاسم طاهري ژباړې ته مراجعه وکړې.*

**د (درویشتم) لوست د تدریس لارښود پلان**

**د تدریس وخت: دوه درسي ساعتونه**

| ۱- د مطالبو سرليکونه | د مطالبو شرح | |
|---|---|---|
| **د لوست موضوع** | د مايا تمدن | |
| **ټوليزه موخه** | زده کوونکي دې په امريکا کې د مايا له تمدن سره آشنا شي. | |
| **۲- ځانګړې روزنيزې موخې (پوهنيزې، مهارتي، ذهنيتي)** | هيله ده د لوست په پای کې زده کوونکي لاندې موخو ته ورسيږي:<br>- زده کوونکي دې له لومړني امريکايي تمدن سره آشنايي پيدا کړي.<br>- زده کوونکي دې د ماياګانو د ژوندانه له ځرنګوالي سره آشنايي پيدا کړي.<br>- زده کوونکي دې د مايا د مذهبي ارزښتونو په هکله معلومات ترلاسه کړي.<br>- زده کوونکي دې په دې هکله چې مايا څرنګه وکولای شول چې خپلې سوداګريزې اړيکې ټينګې کړي، معلومات ترلاسه کړي.<br>مهارت:<br>۱. زده کوونکي دې د امريکا د تمدن د وضعيت د تحليل قدرت ومومي.<br>۲. زده کوونکې دې دا قدرت ومومي چې د آسيا او امريکا تمدنونه سره پرتله کړي.<br>ذهنيتي:<br>په دې اړه ذهنيت چې تمدن تر کومه حده د انسانانو ترمنځ د نږديوالي او آشنايي لامل ګرځي. | |
| **۳- د تدريس چلندونه** | د ښوونکي توضيحات او خبرې- د زده کوونکو بحث او خبرې اترې | |
| **۴- د تدريس توکي** | تخته، تباشير، مارکر، نقشه، درسي کتاب | |
| **۵- د ارزونې چلندونه (شيوه)** | تحريري او تقريري کله يې چې ښوونکی لازم وګڼي | |
| **۶- د تدريس او زده کړې فعاليتونه** | لومړني فعاليتونه او د انګيزې رامنځ ته کول:<br>ښوونکی سلام اچوي او د زده کوونکو د حال پوښتنه کوي وروسته د امريکې په اړه د يوې پوښتنې په طرح کولو او يا د يو انځور په ښودلو سره انګيزه را منځته کوي. | وخت په دقيقو<br>۲۰ دقيقې |

| د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرح | | وخت |
|---|---|---|---|
| ۷- د ښوونکي فعالیتونه | | د زده کوونکو فعالیتونه | ۷۰ |
| | - ښوونکی دې په ټولګي کې د لوست په اړه خبرې وکړي.<br>- ښوونکی دې د زده کوونکو پوښتنو ته ځواب ورکړي.<br>- ښوونکی په پای کې لوست رانغاړي او لنډوي يې. | - زده کوونکي د ښوونکي خبرو ته غوږ ږدي.<br>- زده کوونکي د لوست په اړه د ښوونکي نه پوښتنه کوي.<br>- زده کوونکي سربيره د غوږ نيولو ياداشت نيسي.<br>- زده کوونکي د ښوونکي خبرو ته پاملرنه کوي. | دقيقې |
| ۸- پوښتنو ته ځوابونه او يا په متن کې فعاليتونه | ۱. مایایان د خوراکي توکو د ترلاسه کولو لپاره کډوالی ته اړ شول. يو شمير قومونه د آسيا براعظم له شمال ختيځ نه د امريکا لور ته مهاجر شول. دوی په ځرګند ډول د مغلو له توکمه دي. هغوی د الاسکا له لارې شمالي امريکې ته وردننه شول.<br>۲. ۶۱۳ کاله تر ميلاده دمخه د مایايانو په ژوندانه کې مهم بدلونونه رامنځ ته شول، ابتدايي ژوند يې پريښود، کرنې ته يې مخه وکړه او د تمدن بنسټ يې کيښود.<br>۳. د الکاستون هرم د يوکاتان په جزيرې کې موقعيت لري، لوړوالی يې څه ناڅه ۲۳ متره دی د معماري له پلوه زيات ارزښت لري او هر کال په زرهاوو سيلانيان يې ليدو ته ورځي. | | |
| پوښتنو ته ځواب او وروستني فعاليتونه | په ټولګي کې فعاليت د لوست په متن کې توضيح شوی دی، هغه ته دې مراجعه وشي. | | |

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

د مايا قام: په کلتوري لحاظ هغه لومړني وګړي وو، چې د مرکزي امريکا په ټوله سيمه کې يې يوه متمدنه ټولنه رامنځ ته کړه، دوی د ادبياتو، ښار جوړولو، رياضياتو او ستورو پيژندنې په برخو کې د يادونې وړ برياوې ترلاسه کړې. د مايا قام لومړنی سيمې د مکزيک د سويل وروستنی برخې، د ګواتيمالا غربي سواحل او کڅونه په ختيځ کې د کارابين کڅونه او په شمال کې د يوکاتان له شبه جزيرې څخه عبارت وې.
له ۳۰۰ زيږديز څخه تر ۹۰۰ زيږديز کاله پورې کابو شپږ پيړۍ د مايايانو تمدن د نننی مکزيک، ګواتيمالا او يوکاتان په ځمکو کې وغوړيد. دوی دلته هرمي ډوله عبادت ځايونه، ماڼۍ، ښارونه او داسې مراکز چې د زده کړې مراکز وو، ودان کړي وو. د مايا توري او حروف انځوريز و، خو تر نن پورې د دغو تورو د لوستلو لاره نه ده موندل شوې. په ۲۹۲م کال کې د مايا پخوانی کلتور په غوړيدا پيل کوي. په همدې کال کې د مايا لومړنۍ ليکنه د ګواتيمالا د تيکال په ښار کې وموندل شوه. ځينې کارپوهان باور لري چې د مايا ښارونه د يوې سترې زلزلې له امله وران شوي دي او ځينې نور بيا په دې آند دي چې د ملاريا د تبې له امله له منځه تللي دي د زياتو معلوماتو لپاره دغو سرچينو ته مخه وکړئ.
۱- تاريخ ايالات متحده امريکا، حسين حميدي نيا. ۲- نگاهی به تاريخ جهان، جواهر لعل نهرو، لومړی ټوک.
۳- تاريخ قرون وسطی، د لوړو زده کړو د وزارت چاپ.

**د (ځلرويشتم) لوست د تدريس لارښود پلان**

**د تدريس وخت: دوه درسي ساعتونه**

<table>
<tr><th>۱- د مطالبو سرليکونه</th><th colspan="2">د مطالبو شرح</th></tr>
<tr><td>د لوست موضوع</td><td colspan="2">د آزتکانو تمدن چيرته رامنځ ته شو.</td></tr>
<tr><td>ټوليزه موخه</td><td colspan="2">د آزتکانو له تمدن سره د زده کوونکو آشنا کيدل.</td></tr>
<tr><td>۲- ځانګړې روزنيزې موخې (پوهنيزې، مهارتي، ذهنيتي)</td><td colspan="2">هيله ده د لوست په پای کې زده کوونکي لاندې موخو ته ورسيږي:<br>- د امريکا له اصلي وګړو سره د زده کوونکو آشنا کيدل.<br>- د اصيلو امريکايي ميشتو وګړو له کلتوري او ټولنيزو ارزښتونو سره د زده کوونکو آشنا کيدل.<br>- د آزتکانو له کلتوري ځرنګوالي سره د زده کوونکو آشنا کيدل.<br>مهارت:<br>زده کوونکي دې وکولای شي چې د آزتکانو او مايايانو د تمدنونو ترمنځ توپير بيان کړي.<br>ذهنيتي:<br>د يوه داسې ذهنيت رامنځ ته کول چې مهاجرت تر کومې اندازې د تمدنونو په رامنځ ته کولو او له منځه وړلو کې اغيزمن دی.</td></tr>
<tr><td>۳- د تدريس چلندونه</td><td colspan="2">د ښوونکي توضيحات او د زده کوونکو ترمنځ خبرې او بحثونه.</td></tr>
<tr><td>۴- د تدريس توکي</td><td colspan="2">درسي کتاب، دړه، تباشير، مارکر او د نړۍ نقشه</td></tr>
<tr><td>۵- د ارزونې چلندونه (شيوه)</td><td colspan="2">په ليکنيزه او ګړيزه توګه کله چې ښوونکی لازم وګڼي.</td></tr>
<tr><td rowspan="2">۶- د تدريس او زده کړې فعاليتونه</td><td rowspan="2">لومړني فعاليتونه او د انګيزې رامنځ ته کول:<br>- ښوونکی سلام اچوي او د زده کوونکو د حال پوښتنه کوي، وروسته د لوست په اړه د پوښتنې په طرح کولو يا له کتاب څخه د انځور په ښودلو سره دې په زده کوونکو کې انګيزې رامنځته شي.</td><td>وخت په دقيقو</td></tr>
<tr><td>۲۰ دقيقې</td></tr>
</table>

<table>
<tr><th>د مطالبو سرلیکونه</th><th colspan="2">د مطالبو شرح</th><th>وخت</th></tr>
<tr><td>۷- د ښوونکي فعالیتونه</td><td colspan="2">د زده کوونکو فعالیتونه</td><td rowspan="2">۷۰<br>دقیقې</td></tr>
<tr><td>- ښوونکی دې په ټولګي کې د لوست په هکله خبرې وکړي.<br>- ښوونکی د زده کوونکو پوښتنو ته ځواب ووايي.<br>- ښوونکی په پای کې لوست خلاصه او سره رانغاړي.</td><td colspan="2">- زده کوونکي د ښوونکي خبرو ته غوږ ږدي.<br>- زده کوونکي د لوست په اړه پوښتنې کوي.<br>- زده کوونکي د غوږ نیولو په ترڅ کې یاداشت نیسي.<br>- زده کوونکي د ښوونکي خبرو ته پاملرنه کوي.</td></tr>
<tr><td>۸- پوښتنو ته ځوابونه او یا په متن کې فعالیتونه</td><td colspan="3">- آزتکانو د څلورمې زیږدیزې پیړۍ په سر کې د مایایانو ټوله سیمه ونیوله.<br>- آزتکانو خپلې سوداګریزې چارې له سویلي امریکې سره جوړې کړې وې.<br>- د آزتکانو امپراتوري ۲۰۰ کاله دوام وکړ له جغرافیایي اکتشافاتو وروسته اسپانویانو په دغو ځمکو کې ګام کیښود. دغه سیمې یې ونیولې. د آزتکانو تمدن د اروپایانو په واسطه دړې وړې شو.</td></tr>
<tr><td>پوښتنو ته ځواب او وروستني فعالیتونه</td><td colspan="3">د هرې ډلې فعالیتونه د لوست په ترڅ کې توضیح شوي دي، هغو ته دې مراجعه وشي.</td></tr>
</table>

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

آزتکان له ۲۰۰ کلونو څخه په لږ وخت کې په دې بریالي شول چې یوه الوول تمدن اوستره امپراتوري په لرغوني مرکزي امریکا کې رامنځ ته کړي. د دوی اصلي سرچینه په شمال کې وه چې د مرکزي امریکا له نفوذه بهر وه.

داسې ښکاري چې هغوی په لومړي سر کې ښکاریان او وړې ټولوونکي وو او د هغوی اصلي عادت جنګیدل وو. هغوی کله ناکله د نورو قامونو مزدوري کوله. او بیا یې ورسره جګړه کوله، دغو پیاوړو کوچیانو ځانو ته مکزیکا ویل د آزتک اصطلاح وروسته پکې رواج شوه، د دوی د تفکر شیوه له ډیرو خواوو نه د دوی د مخینې او د ژوند د څرنګوالي ښکارندوی وه. د آزتکانو د امپراتورۍ عالي تمدن تر ډیره بریده د انسانانو له قربانیو سره نښتي و. پوهانو اعلام کړه چې آزتکانو د زړه، نیزې او لاس په شان لیک درلود او د ریاضیاتو ډیر پیاوړی سیستم یې درلود، خو د آزتکانو تمدن په ۱۵۱۹ز کال کې د هسپانویانو له خوا له منځه یوووړل شو. آزتکانو په معمارۍ، او ستورو پیژندنې کې ډیر ماهران وو، لاس ته راغلي اسناد ښیي چې د آزتکانو تمدن د نن ورځې مکسیکو سیټي ته نږدې واقع و.

د زیاتو معلوماتو لپاره مخه کړئ دغو سرچینو ته.

۱- تاریخ ایالات متحده امریکا، حسین حمیدي نیا.

۲- نگاهی به تاریخ جهان، جواهر لعل نهرو، لومړی ټوک.

۳- تاریخ قرون وسطی، د لوړو زده کړو وزارت.

**د (پنځه ویشتم) لوست د تدریس لارښود پلان**

**د تدریس وخت: دوه درسي ساعتونه**

| ۱- د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرح | |
|---|---|---|
| **د لوست موضوع** | د اینکا تمدن څرنګه تمدن و؟ | |
| **ټولیزه موخه** | زده کوونکي دې د اینکار د تمدن په اړه معلومات تر لاسه کړي. | |
| **۲- ځانګړې روزنیزې موخې (پوهنیزې، مهارتي، ذهنیتي)** | هیله ده د لوست په پای کې زده کوونکي لاندې موخو ته ورسیږي:<br>- د اینکا له تمدن سره د زده کوونکو آشنا کیدل.<br>- د اینکا له کلتور سره د زده کوونکو آشنا کیدل.<br>- زده کوونکي دې په دې دورې کې د مذهبي کاهنانو د نقش په اړه معلومات ترلاسه کړي.<br>- زده کوونکي دې د پاتې شویو آثارو په اړه او د دې تمدن د امپراتورۍ د سیمې په هکله معلومات ترلاسه کړي. | |
| **۳- د تدریس چلندونه** | په ټولګي کې د ښوونکي توضیحات او د لوست په اړه د زده کوونکو خبرې اترې. | |
| **۴- د تدریس توکي** | تخته، تباشیر، درسي کتاب، مارکر، د امریکا نقشه. | |
| **۵- د ارزونې چلندونه (شیوه)** | شفاهي- تحریري | |
| **۶- د تدریس او زده کړې فعالیتونه** | لومړني فعالیتونه او د انګیزې رامنځ ته کول:<br>ښوونکی سلام اچوي او د زده کوونکو د حال پوښتنه کوي، وروسته د لوست په اړه د پوښتنې په طرح کولو او یا د امریکا د نقشې په ښودلو سره او په زده کوونکو کې انګیزه رامنځ ته کوي. | وخت په دقیقو<br>۲۰ دقیقې |

<table>
<tr><th>د مطالبو سرليکونه</th><th colspan="2">د مطالبو شرح</th><th>وخت</th></tr>
<tr><td colspan="2">۷- د ښوونکي فعالیتونه<br>- ښوونکی د لوست په اړه زده کوونکو ته توضیحات ورکوي.<br>- ښوونکی د لوست په اړه پوښتنې کوي.<br>- ښوونکی د لوست په لنډولو او راټولولو پیل کوي.</td><td>د زده کوونکو فعالیتونه<br>- زده کوونکي د ښوونکي خبرو ته غوږ ږدي.<br>- زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځوابونه وایي.<br>- زده کوونکي د ښوونکي خبرو ته غوږ ږدي او یاداشتوي.</td><td>۷۰ دقیقې</td></tr>
<tr><td>۸- پوښتنو ته ځوابونه او یا په متن کې فعالیتونه</td><td colspan="3">۱. هغو خلکو چې له آسیا څخه مهاجرت کړی و، په مکسیکو، مرکزي امریکې او پیرو کې یې درې مهم تمدنونه رامنځ ته کړل.<br>۲. د نړۍ نقشې او د لوست متن ته دې رجوع وشي.<br>۳. اینکا د آزتک پر خلاف وتوانیدل چې یوه موټې ټولنه رامنځ ته کړي، ټول سیاسي ځواک د پاچا په لاس کې و.<br>٤. تراوسه چې کوم آثار له اینکا پاته دي عبارت دي له زري شیانو، د اوبو رسولو کانالونه او نور چې د اندیز د غرو په لمنو کې جوړ شوي دي او نور.</td></tr>
<tr><td>پوښتنو ته ځواب او وروستني فعالیتونه</td><td colspan="3">د دواړو ډلو فعالیتونه د لوست په ترڅ کې توضیح شوي دي، هغه ته دې مراجعه وشي.</td></tr>
</table>

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

د اینکا اصطلاح د (خدای او ځمکې) په معنا اخیستل شوې ده او دا بیا د امریکې په سویل کې د پیرو هیواد د خلکو له ژبې سره تړاو لري. د اینکا تمدن په لومړي سر کې یو کوچنی ښاري دولت و، خو په (۱۵)زیږدیزې پیړۍ کې د اینکا نهم امپراتور یعنې (ستر لاربنود) د اینکا سیمې ته پراختیا ورکړه. په اینکا کې لوی ښار په ۱٤٥۰ز کال کې جوړ شوی دی. چې په سل ګونو کلونه دمخه د اسپانویانو له خوا متروک شوی دی چې له پیړیو را په دې خوا هیر شوی و. له آزتکا او مایا وروسته دریم تمدن چې لرغوني امریکې پورې اړه لري هغه د اینکا تمدن دی. د اینکا رسم الخط انځوریز و. کله چې د اینکا تمدن څیړل کیږي، نو ورڅخه دا ثابتیږي چې هغو د جراحۍ په بیلابیلو برخو په تیره د سر د کوپړۍ په سطحي عملیاتو کې ځانګړی مهارت درلود. د امریکې د اوسني وخت د هوا پیژندونکو په آند دغه تمدن د پرله پسې وچکالیو له امله له منځه تللی دی.

*د زیاتو معلوماتو لپاره رجوع وکړئ:*

*۱- تاریخ ایالات متحده امریکا، حسین حمیدي نیا.*

*۲- تاریخ قرون وسطی، کاسمینسکي.*

*۳- نګاهی به تاریخ جهان، جواهر لعل نهرو، لومړی ټوک.*

**د (شپږ ویشتم) لوست د تدریس لارښود پلان**

**د تدریس وخت: دوه درسي ساعتونه**

| ۱- د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرح | |
|---|---|---|
| **د لوست موضوع** | د امریکا کشف او د مهاجرتونو پیل | |
| **ټولیزه موخه** | زده کوونکو دې د امریکاد کشف او مهاجرتونو د پیل په اړه معلومات ترلاسه کړي. | |
| **۲- ځانګړې روزنیزې موخې (پوهنیزې، مهارتي، ذهنیتي)** | هیله ده د لوست په پای کې زده کوونکي لاندې موخو ته ورسیږي:<br>- له کریستف کولمب سره د زده کوونکو آشنا کېدل.<br>- زده کوونکي دې له دې مطلب سره آشنا شي چې څرنګه د امریکې ځمکه په دې نامه ونومول شوه؟<br>- زده کوونکي دې په دې اړه معلومات ترلاسه کړي چې د اروپایانو مهاجرت امریکا ته څه ډول ګټې درلودې.<br>مهارت:<br>۱- په زده کوونکو کې پر امریکا باندې د اروپایانو د کلتوري یرغل په اړه د تحلیل د ځواک پیاوړي کېدل.<br>۲- زده کوونکي دې وکولای شي چې د تور پوستکو د مریي توب په اړه خپل آند او نظر وړاندې کړي.<br>ذهنیتي:<br>په دې اړه د ذهنیت پیدا کول چې نوې نړۍ څرنګه وپېژندل شوه. | |
| **۳- د تدریس چلندونه** | د ښوونکي خبرې اترې- سوال او ځواب. | |
| **۴- د تدریس توکي** | تخته، تباشیر، درسي کتاب، د نړۍ نقشه. | |
| **۵- د ارزونې چلندونه (شیوه)** | شفاهي- تحریري | |
| **۲- د تدریس او زده کړې فعالیتونه** | لومړني فعالیتونه او د انګیزې رامنځ ته کول:<br>- ښوونکی سلام اچوي او د زده کوونکو د حال پوښتنه کوي وروسته د پوښتنې طرح کولو او یا د لوست په اړه د یو لنډ مطلب ویلو سره د انګیزې رامنځ ته کول. | وخت په دقیقو<br>۲۰ دقیقې |

| د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرح | | وخت |
|---|---|---|---|
| ۷- د ښوونکي فعالیتونه | | د زده کوونکو فعالیتونه | ۷۰ دقیقې |
| - ښوونکی په ټولګي کې لوست توضیح کوي.<br>- ښوونکی پوښتنو ته ځواب وایي.<br>- ښوونکی لوست راټولوي او د لوست په خلاصه کولو پیل کوي. | | - زده کوونکي د ښوونکي څرګندونو ته غوږ ږدي.<br>- زده کوونکي د لوست په اړه له ښوونکي نه پوښتنې کوي.<br>- زده کوونکي د لوست مهم ټکي په خپلو کتابچو کې لیکي. | |
| ۸- پوښتنو ته ځوابونه او یا په متن کې فعالیتونه | ۱. د امریکې قاره په ۱٤۹۲ ز کال کې د کریستف کولمب په واسطه کشف شوه.<br>۲. کله چې امریکو وسپوچي د سویلي امریکا شمالي سیمو ته سفر وکړ او پوه شو چې هغې سیمې ته چې ده سفر کړی دی، هند نه دی، بلکه یوه نوې قاره ده په همدې لحاظ د هغه نوم په مناسبت دغه سیمه امریکا ونومول شوه.<br>۳. د امریکا لومړنیو کاشفینو فکر کاوه هغه سیمه چې کریستف کولمب کشف کړې ده د آسیا ختیځه برخه (هند) دی. | | |
| پوښتنو ته ځواب او وروستني فعالیتونه | فعالیتونه د لوست په متن کې توضیح شوی دی، هغه ته دې مراجعه وشي. | | |

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

د امریکې له کشف څخه وروسته یو زیات شمیر اروپایان د سوداګرۍ تر نامه لاندې امریکې ته وردننه شول. هغوی په مستعمره کولو لاس پورې کړ. د دې سیمې اصلي خلک یې له منځه یوړل. لومړني خلک چې دغې سیمې ته یې هجرت وکړ هسپانویان وو. تر دوی وروسته پرتګالیانو دغې سیمې ته مخه کړه. هسپانویانو د سرو زرو په لټون د کشف شویو سیمو داخلي برخې ونیولې چې لومړی د آنتیل په مجمع الجزایر په کوباهاسیتي او پورتوریکو کې ځای پر ځای او د دغې سیمې اصلي استوګني یې مسیحیت ته رامات کړل. خو پرتګالیان تر ډیره د درملو د تیارولو په فکر کې وو او سوداګریزې نماینده ګۍ یې جوړولې. د دې سیمو اصلي خلک د سختو او درنو کارونو له امله چې په معادنو کې یې کاوه، مړه کیدل او د هغوی پر ځای یې پیاوړي تور پوستکي دې سیمې ته راوستل بالاخره دغه پراختیا غوښتنه د دې لامل شوه چې د دغې سیمې اصلي خلک له منځه ولاړ شي او پر ځای یې د امریکا اکثریت سیمې په مهاجر میشتو سیمو بدلې شي.

*ښاغلی ښوونکی د لازیاتو معلوماتو لپاره کولای شي لاندې سرچینو ته مخه کړي:*

*۱- نګاهی به تاریخ جهان، جواهر لعل نهرو، لومړی ټوک.*

*۲- تاریخ ایالات متحده امریکا، حسین حمیدي نیا.*

*۳- تاریخ قرون وسطی، کاسمینسکي.*

*٤- کلیات تاریخ، اسماعیل دولت شاهي.*

**د (اوه ویشتم) لوست د تدریس لارښود پلان**

**د تدریس وخت: دوه درسي ساعتونه**

| ۱- د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرح | |
|---|---|---|
| **د لوست موضوع** | **د امریکا د متحده ایالاتو خپلواکي** | |
| **ټولیزه موخه** | زده کوونکې دې د امریکا د متحده ایالاتو د خپلواکی په اړه معلومات تر لاسه کړي. | |
| **۲- ځانګړې روزنیزې موخې (پوهنیزې، مهارتي، ذهنیتي)** | هیله ده د لوست په پای کې زده کوونکي لاندې موخو ته ورسیږي:<br>- په دې لوست کې به زده کوونکي په دې اړه معلومات ترلاسه کړي چې کومو هیوادونو په امریکا کې د مستعمره کولو تکل درلود.<br>- زده کوونکي به په دې اړه چې انګریزانو د مالیاتو د اخیستلو لپاره څه ډول قوانین وضع کړل، معلومات ترلاسه کړي.<br>- زده کوونکي دې په دې باب چې امریکایانو د خپلواکی د ترلاسه کولو لپاره څرنګه په مبارزو پیل وکړ، معلومات لاس ته راوړي.<br>- د بشر د حقوقو له اعلامیې سره د زده کوونکو آشنا کیدل.<br>مهارتي:<br>۱- زده کوونکي کولای شي د خپلواکی په اړه څو کرښې ولیکي.<br>۲- زده کوونکي دې په دې اړه چې ولې له تور پوستکو څخه د مریې (غلام) په ډول استفاده کیده، خپل نظر او آند څرګند کړي.<br>ذهنیتي:<br>په دې اړه د ذهنیت ورکول چې د بشر د حقوقو اعلامیه له څه ډول اهمیت څخه برخمنه ده. | |
| **۳- د تدریس چلندونه** | په ټولګي کې د ښوونکي توضیحات د لوست په اړوند د زده کوونکو خبرې اترې | |
| **۴- د تدریس توکي** | تخته، تباشیر یا مارکر، درسي کتاب او د متحده ایالاتو نقشه | |
| **۵- د ارزونې چلندونه (شیوه)** | شفاهي- تحریري | |
| **۶- د تدریس او زده کړې فعالیتونه** | لومړني فعالیتونه او د انګیزې رامنځ ته کول:<br>ښوونکی سلام اچوي او د زده کوونکو د حال پوښتنه کوي، وروسته د لوست په اړوند د یوې پوښتنې په طرح کولو سره دې په زده کوونکو کې انګیزه رامنځ ته شي او یا د خپلواکی په اړه دې یو لنډ مطلب وویل شي. | وخت په دقیقو<br>۲۰ دقیقې |

| د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرح | وخت |
| --- | --- | --- |
| ۷- د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | ۷۰ دقیقې |
| - ښوونکی په ټولګي کې د لوست په اړه توضیحات ورکوي.<br>- ښوونکی پوښتنو ته ځواب وایي.<br>- ښوونکی درس خلاصه کوي او رانغاړي یې. | - زده کوونکي د ښوونکي توضیحاتو ته غوږ نیسي.<br>- زده کوونکي د لوست په اړه له ښوونکي نه پوښتنه کوي.<br>- زده کوونکي د لوست مهم ټکي په کتابچه کې لیکي. | |
| ۸- پوښتنو ته ځوابونه او یا په متن کې فعالیتونه | ۱. د امریکا په کشف سره هغه خلک چې د شتمنۍ په لټه کې وو، امریکې ته ولاړل، لکه: انګریزان، فرانسویان، پرتګالیان او هسپانویان.<br>۲. د انګلستان دولت په ۱۷۶۵ز د تمبر په نامه د مالیاتو اخیستلو قانون د ۱۳ ایالاتو په وګړو باندې وضع کړ.<br>۳. په ۱۷۷۳ز درې بېړیو د بوستون په بندر کې لنګر واچاوه. د هغه ځای خلکو د بېړیو له راتګ سره مخالفت درلود. کله چې دغه بېړۍ بېرته ولاړې، نو د هغه ځای اوسېدونکو د هغو ټول چای سمندر ته واچاوه، دغه پېښه د امریکا خلکو ته د خپلواکۍ د جنګ لپاره پلمه شوه.<br>٤. په ۱۷۸٤ز کې د انګلستان دولت رسماً د متحده ایالاتو خپلواکي په رسمیت وپېژانده. | |
| ۹- پوښتنو ته ځواب او وروستي فعالیتونه | په ټولګي کې فعالیت د لوست په متن کې توضیح شوی دی، هغه ته مراجعه وکړئ. | |

## د ښوونکي لپاره اضافي معلومات

د امریکې د خپلواکۍ غوښتنې جنګونه چې له ۱۷۷۵- ۱۷۸۱ز کلو پورې یې دوام وکړ، د آزادۍ او د بشر د حقونو په لور ګامونه وو. د شمالي امریکې ۱۳ مستعمره ایالتونو د خپلو موخو د ترلاسه کولو لپاره د انګلستان له دولت سره په جنګ کې ښکیل شول. همدارنګه امریکایان په دې بریالي شوي وو چې لازم کالي په خپله لاس ته راوړي او له هغو محدودیتونو څخه چې انګریزانو وربانديې وضع کړي وو ناخوښي شول.

د انګلستان دولت نوی استعماري سیاست مخ ته کړ. له ۱۷۵٦- تر ۱۷٦۳ ز کلو پورې فرانسې او انګلستان د مستعمراتو پر سر په امریکې او هندوستان کې جنګ ته ورودانګل. له دې امله د مستعمراتو خلکو باید د انګریزانو د عسکرو او سرتیرو لګښتونه ورکړي وای چې د انګریزانو دغه عمل د مستعمراتو د وګړو د خواشینۍ لامل وګرځید. په لومړي سر کې د امریکا خلکو غوښتل چې کورنۍ زیاته خپلواکي ولري او د انګریزانو په شان له حقوقو او امتیازاتو څخه برخمن واوسي، خو چې څومره جنګ زور اخیست، هماغومره د امریکې د خلکو مینه له خپلواکۍ سره ډیریده، خو له دې امله خواشینونکي وه چې د انګلستان دولت د هغو د ځپلو لپاره له پوځي ځواک څخه کار اخیست. بالاخره د ۱۷۷٦ز کال د فبرورۍ په میاشت کې د امریکا د خپلواکۍ اعلامیه چې مبتکر یې توماس جفرسون و، خپره شوه چې هلته داسې یادونه شوې وه:

د بشر ټول افراد مساوي حقوق لري. په طبیعي توګه د ژوند کولو حق لري، باید له خپلواکۍ څخه برخمن شي او په هغه صورت کې چې په حقوقو یې تیری وشي، د پاڅون حق لري.

*د زیاتو معلوماتو لپاره مخه کړي دغو سرچینو ته:*

*۱- تاریخ ایالات متحده امریکا، حسین حمیدي نیا.*

*۲- تاریخ قرون وسطی، کاسمینسکي.*

*۳- کلیات تاریخ، اسماعیل دولت شاهي.*